# کشف الباری

## عما فی

## صحیح البخاری

تالیف ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان شیخ الحدیث
جامعه فاروقیه کراچی

# کتاب الأضاحی

جلد (۲۳)

**خصوصیات**

- ← داحادیثو تخریج
- ← د تعلیقات بخاری تخریج
- ← داسماء الرجال مختصر تعارف
- ← د گرانو لغاتو لغوی صرفی اونحوی حل
- ← ماقبل باب سره د ربط پوره تحقیق
- ← دشرحی دهري خبري لاندي په حاشیه کښې حواله
- ← د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې پوره تحقیق
- ← د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان اوبیا د مذهب حنفی ترجیح
- ← د بخاری د احادیثو اطراف خودل

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۶۱۶

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

شارح:- صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان

شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست--
- دیوبند کتب خانه خوست-- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد-- ۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل ۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰--
- قدرت کتب خانه کابل --
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل-- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد-- ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنګی پېښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........۰۳۱۵۹۵۹۵۸۱۷

# اجمالی فہرست

## ۷۶-کِتَابُ الْأَضَاحِيِّ



## ۷۷-کتاب الأشربة (الاحادیث: ۵۲۳۵-۵۳۱۶)

| شمیرہ | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

## ۷۸-کتاب المرضی (الاحادیث: ۵۳۱۷-۵۳۵۳)



## ۷۹- کتاب الطب: (الاحادیث: ۵۳۵۴-۵۴۴۵)

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

# تفصیلی فهرست

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

## ۱۶-باب: بَابُ مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَالأَصْنَامِ



## ۱۷-بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللَّهِ»



## ۱۸-بَابُ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ مِنَ القَصَبِ وَالمَرْوَةِ وَالحَدِيدِ

## ۲۳-بَابُ مَانَدَّ مِنَ الْبَهَائِمِ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْوَحْشِ

## ۲۴-بَابُ النَّحْرِ وَالذَّبْحِ



## ۲۵-بَابُ مَا يُكْرَهُ مِنَ الْمُثْلَةِ وَالْمَصْبُورَةِ وَالْمُجَثَّمَةِ

## ۲۶-بَابُ: لَحْمِ الدَّجَاجِ



## ۲۷-بَابُ لُحُومِ الخَيْلِ

## ۲۸- بَابُ لُحُومِ الحُمُرِ الإِنْسِيَّةِ



## ۲۹- بَابُ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ



## ۳۰- بَابُ: جُلُودِ المَيْتَةِ

## ۳۱-: بَابُ المِسْكِ



## ۳۲: بَابُ: الأَرْنَبِ



## ۳۳: بَابُ: الضَّبِّ

## ۳۴-بَابُ إِذَا وَقَعَتِ الفَأْرَةُ فِي السَّمْنِ الجَامِدِ أَوِ الذَّائِبِ



## ۳۵-بَابُ الوَسْمِ وَالعَلَمِ فِي الصُّورَةِ

٣٦=بَابُ إِذَا أَصَابَ قَوْمٌ غَنِيمَةً، فَذَبَحَ بَعْضُهُمْ غَنَمًا أَوْ إِبِلًا، بِغَيْرِ أَمْرِ أَصْحَابِهِمْ، لَمْ تُؤْكَلْ



٣٧=بَابُ إِذَا نَدَّ بَعِيرٌ لِقَوْمٍ، فَرَمَاهُ بَعْضُهُمْ بِسَهْمٍ فَقَتَلَهُ، فَأَرَادَ إِصْلَاحَهُمْ، فَهُوَ جَائِزٌ



٣٨=بَابُ إِذَا أَكَلَ الْمُضْطَرُّ

## ۷۶-كِتَابُ الأَضَاحِيّ

## ۱-بَابُ سُنَّةِ الأُضْحِيَةِ

## ۲=بَابُ قِسْمَةِ الإِمَامِ الأَضَاحِيَّ بَيْنَ النَّاسِ



## ۳=بَابُ الأُضْحِيَّةِ لِلْمُسَافِرِ وَالنِّسَاءِ

## ۴=بَابُ مَا یُشْتَهٰی مِنَ اللَّحْمِ یَوْمَ النَّحْرِ



## ۵=بَابُ مَنْ قَالَ الْأَضْحٰی یَوْمُ النَّحْرِ



## ۶=بَابُ الْأَضْحٰی وَالْمَنْحَرِ بِالْمُصَلّٰی

## ۷=بَابٌ فِي أُضْحِيَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ، وَيُذْكَرُ سَمِينَيْنِ

## ۸=بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِي بُرْدَةَ: «ضَحِّ بِالْجَذَعِ مِنَ الْمَعَزِ، وَلَنْ تَجْزِيَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ»



## ۹=بَابُ مَنْ ذَبَحَ الْأَضَاحِيَّ بِيَدِهِ



## ۱۰=بَابُ مَنْ ذَبَحَ ضَحِيَّةَ غَيْرِهِ

## کتاب الأشربة (الاحادیث: ۵۲۳۵-۵۲۱۹)

## ۱=بَاب: الخَمْرُمِنَ العِنَبِ



## ۲=بَابُ: نَزَلَ تَحْرِيمُ الخَمْرِوَهِيَ مِنَ البُسْرِوَالتَّمْرِ

## ۸=بَابُ نَقِيعِ التَّمْرِ مَا لَمْ يُسْكِرْ



## ۹=بَابُ الْبَاذَقِ، وَمَنْ نَهَى عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ مِنَ الْأَشْرِبَةِ



## ۱۰=بَابُ مَنْ رَأَى أَنْ لَا يَخْلِطَ الْبُسْرَ وَالتَّمْرَ إِذَا كَانَ مُسْكِرًا، وَأَنْ لَا يَجْعَلَ إِدَامَيْنِ فِي إِدَامٍ

## ۱=بَابُ شُرْبِ اللَّبَنِ

## ۱۲=بَابُ اسْتِعْذَابِ الْمَاءِ



## ۱۳=بَابُ شُرْبِ اللَّبَنِ بِالْمَاءِ



## ۱۴=بَابُ شَرَابِ الْحَلْوَىٰ وَالْعَسَلِ



## ۱۵=بَابُ الشُّرْبِ قَائِمًا

## ۱۶= بَابُ مَنْ شَرِبَ وَهُوَ وَاقِفٌ عَلَى بَعِيرِهِ



## ۱۷= بَابُ الأَيْمَنَ فَالأَيْمَنَ فِي الشُّرْبِ



## ۱۸= بَابٌ: هَلْ يَسْتَأْذِنُ الرَّجُلُ مَنْ عَنْ يَمِينِهِ فِي الشُّرْبِ لِيُعْطِيَ الأَكْبَرَ



## ۱۹= بَابُ الكَرْعِ فِي الحَوْضِ



## ۲۰= بَابُ خِدْمَةِ الصِّغَارِ الكِبَارَ

## ۲۱=بَابُ تَغْطِيَةِ الإِنَاءِ



## ۲۲=بَابُ اخْتِنَاثِ الأَسْقِيَةِ



## ۲۳=بَابُ الشُّرْبِ مِنْ فَمِ السِّقَاءِ



## ۲۴=بَابُ النَّهْيِ عَنِ التَّنَفُّسِ فِي الإِنَاءِ



## ۲۵=بَابُ الشُّرْبِ بِنَفَسَيْنِ أَوْثَلاثَةٍ

## ۲۶=بَابُ الشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ



## ۲۷=بَابُ آنِيَةِ الفِضَّةِ



## ۲۸=بَابُ الشُّرْبِ فِي الأَقْدَاحِ



## ۲۹=بَابُ الشُّرْبِ مِنْ قَدَحِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَآنِيَتِهِ



## ۳۰=بَابُ شُرْبِ البَرَكَةِ وَالمَاءِ المُبَارَكِ

## کتاب المرضی (الاحادیث: ۵۶۴۷-۵۶۷۷)



## ۱=بَابُ مَا جَاءَ فِي كَفَّارَةِ الْمَرَضِ

## ۲=بَابُ شِدَّةِ الْمَرَضِ



## ۳=بَاب: أَشَدُّ النَّاسِ بَلَاءً الأَنْبِيَاءُ، ثُمَّ الأَوَّلُ فَالأَوَّلُ



## ۴=بَابُ وُجُوبِ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ



## ۵=بَابُ عِيَادَةِ الْمُغْمى عَلَيْهِ



## ۶=بَابُ فَضْلِ مَنْ يُصْرَعُ مِنَ الرِّيحِ



## ۷=بَابُ فَضْلِ مَنْ ذَهَبَ بَصَرُهُ

## ٨=بَابُ عِيَادَةِ النِّسَاءِ الرِّجَالَ



## ٩=بَابُ عِيَادَةِ الصِّبْيَانِ



## ١٠=بَابُ عِيَادَةِ الأَعْرَابِ



## ١١=بَابُ عِيَادَةِ الْمُشْرِكِ

## ۱۷=بَابُ قَوْلِ المَرِيضِ قُومُوا عَنِّي



## ۱۸=بَابُ مَنْ ذَهَبَ بِالصَّبِيِّ المَرِيضِ لِيُدْعَى لَهُ



## ۱۹=بَابُ نهي تَمَنِّي المَرِيضِ المَوْتَ

## ۲۰=بَابُ دُعَاءِ العَائِدِ لِلْمَرِيضِ



## ۲۱=بَابُ وُضُوءِ العَائِدِ لِلْمَرِيضِ



## ۲۲=بَابُ مَنْ دَعَا بِرَفْعِ الوَبَاءِ وَالحُمّٰى

## ۷۹=کتاب الطب: (الاحادیث: ۵۳۵۳-۵۳۴۵)

## ۳=بَابٌ: الشِّفَاءُ فِي ثَلاَثٍ



## ۴=بَابُ الدَّوَاءِ بِالْعَسَلِ

## ۵=باب: الدَّوَاءِ بِأَلْبَانِ الإِبِلِ



## ۶=بَابُ الدَّوَاءِ بِأَبْوَالِ الإِبِلِ



## ۷=بَابُ الحَبَّةِ السَّوْدَاءِ



## ۸=بَابُ التَّلْبِينَةِ لِلْمَرِيضِ

## ۹= بَابُ السَّعُوطِ



## ۱۰= بَابُ السَّعُوطِ بِالقُسْطِ الهِنْدِيِّ وَالبَحْرِيِّ "



## ۱۱= بَابُ أَيِّ سَاعَةٍ يَحْتَجِمُ



## ۱۲= بَابُ الحَجْمِ فِي السَّفَرِ وَالإِحْرَامِ

## ۱۳=بَابُ الحِجَامَةِ مِنَ الدَّاءِ



## ۱۴=بَابُ الحِجَامَةِ عَلَى الرَّأسِ



## ۱۵=بَابُ الحِجَامَةِ مِنَ الشَّقِيقَةِ وَالصُّدَاعِ



## ۱۶=بَابُ الحَلْقِ مِنَ الأَذَى



## ۱۷=بَابُ مَنِ اكْتَوَى أَوْكَوَى غَيْرَهُ، وَفَضْلِ مَنْ لَمْ يَكْتَوِ



## ۱۸=بَابُ الإِثْمِدِ وَالكُحْلِ مِنَ الرَّمَدِ

## ۱۹=بَابُ الجُذَامِ



## ۲۰=بَابٌ: المَنُّ شِفَاءٌ لِلعَيْنِ



## ۲۱=بَابُ اللَّدُودِ



## ۲۲=بَابُ العُذْرَةِ



## ۲۳=بَابُ دَوَاءِ المَبْطُونِ



## ۲۴=بَابُ لاَ صَفَرَ، وَهُوَ دَاءٌ يَأْخُذُ البَطْنَ

# ١٣-بَابُ أَكْلِ الجَرَادِ

**[حديث نمبر ٥١٧٢]**

٥٢٩٥- حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي أَوْفَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ أَوْ سِتًّا، كُنَّا نَأْكُلُ مَعَهُ الجَرَادَ»[1]

ترجمه: د حضرت عبدالله بن ابی اوفی ﷺ روايت دې، فرمائي چې مونږ رسول کريم ﷺ سره اووۀ يا شپږ غزواتو کښې شريک شوی وو، مونږ به نبی کريم ﷺ سره مولخان خوړل.

**تراجم الرجال:**

**قوله:** أَبُو الوَلِيدِ: دا مشهور امام ابوالوليد هشام بن عبدالملک باهلی طيالسی رحمه الله دې. ددوئ تفصيلی حالات په كِتَابُ العِلْمِ/بَابُ إِثْمِ مَنْ كَذَبَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کښې تير شوی دی.[2]

**قوله:** شُعْبَةُ: داامير المؤمنين شعبه بن الحجاج الوردعتکی واسطی بصری رحمه الله دې. ددوئ تفصيلی حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ/بَابٌ: المُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ المُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ کښې تير شوی دی.[3]

**قوله:** أَبِي يَعْفُورٍ: دا راوی ابو يعفور وقدان العبدی الکوفی دې.[4]

**ابويعفور دوه دی:** يو ابو يعفور الاکبر، او بل ابويعفور الاصغر، د ابويعفور الاکبر نوم واقد او لقب ئې وقدان دې. اود ابو يعفور الاصغر نوم عبدالرحمن بن عبيد بن نسطاس دې.[5] دلته د ابويعفور نه ابو يعفور الاکبر وقدان العبدی الکوفی مراد دې.[6] او په بخاری شريف کښې ددوئ صرف دوه روايتونه دی. يو دباب روايت اودويم په كتاب الأذان کښې دې.[7]

---

[1] الحديث أخرجه مسلم كتاب الصيد والذبائح، باب إباحة الجراد، رقم الحديث:[١٩٥٢]. وأخرجه الترمذی فی الأطعمة، باب ما جاء فی أكل الجراد، رقم الحديث:[١٨٢٢]. وأخرجه أبی داود فی الأطعمةباب: فی أكل الجراد رقم الحديث:[٣٨١٢]. وأخرجه النسائی فی الصيد، باب الجراد رقم الحديث[٤٣٦١]. جامع الأصول: الجراد رقم الحديث[٦-٥٥٠ – ٧/٤٣٠].

[2] (كشف الباری: ٤/١٥٩)

[3] (كشف الباری: ١/٦٧٨)

[4] (تهذيب الكمال،رقم الترجمة: ٦٦٩٤، ٣٠/٤٥٩)

[5] تهذيب الكمال: ٣٤/٤١٢، ٤١٣)

[6] (عمدة القاری:٢١/١٦٣، فتح الباری:١٢/٧٧٤، شرح الكرمانی: ٢٠/٩١، الكوثر الجاری:٩/١٥٥)

[7] (الجامع الصحيح للبخاری : كتاب الأذان/بَابُ وَضْعِ الأَكُفِّ عَلَى الرُّكَبِ فِي الرُّكُوعِ رقم الحديث:٧٩٠ فتح الباری: ١٢/٧٧٥)

ابو يعفور الاكبر وقدان ثقه راوى دې[۱] ددوئ تفصيلى حالات په كتاب الأذان باب وضع الاكف على الركب فى الركوع كښې تير شوى دى[۲].
البته نووى رحمة الله عليه په دې روايت كښې ابو يعفور نه ابويعفور الاصغر عبدالرحمن بن عبيد مراد اخستې دې[۳].
ليكن علامه عينى رحمة الله عليه او حافظ ابن ابن حجر رحمة الله عليه فرمائى چې صحيح خبره داده چې دلته ابو يعفور نه ابو يعفور الاكبر مراد دې ځكه چې امام ترمذى رحمة الله عليه ددې حديث مبارك د تخريج نه پس په جزم سره فرمائى چې ددې حديث روايت كوؤنكى راوى ابو يعفور دې او دده نوم واقد دې[۴].
اوبل دا چې ابن ابى حاتم رحمة الله عليه د ابويعفور الاصغر په ترجمه كښې فرمائى چې ابو يعفرر الاصغر د عبدالله بن ابى اوفى نه سماعت نه دې كړې[۵].
چنانچه داسماء الرجمال په كتابونو كښې د ابويعفور الاصغرعبدالرحمن بن عبيد په مشانخو كښې ابراهيم نخى رحمة الله عليه، ابوثابت، ايمن بن ثابت رحمة الله عليه، السائب بن يزيد رحمة الله عليه، ابوالشعثاء رحمة الله عليه، سليم بن اسود المحاربى رحمة الله عليه، عامر الشعبى رحمة الله عليه، عبيد بن نسطاس رحمة الله عليه، ابوالضحى مسلم بن صبيح رحمة الله عليه او وليد بن العيز رحمة الله عليه ذكر دى، خو ددوئ په مشائخو كښې د ابن ابى اوفى ذكر نشته دې.[۶]
البته ابن حبان ددوئ په ترجمه كښې فرمائيلى دى چې دوئ د ابن ابى اوفى او حضرت انس بن مالك نه روايت كوى.[۷]
ابو يعفور الاصغر عبدالرحمن بن عبيد هم ثقه راوى دې.[۸]

---

[۱]) سير أعلام النبلاء،رقم الحديث: ۸۵، ۲۱۴/۵، تهذيب التهذيب رقم الترجمة: ۲۱۰، ۱۲۳/۱۱، الجرح والتعديل:۲۰۷، ۶۲/۹، كتاب الثقات لابن حبان رقم الترجمة: ۴۳۲۷، ۱۰۷/۳، تقريب التهذيب رقم الحديث: ۷۴۴۰، ۲۸۳/۲، تهذيب الكمال،رقم الترجمة: ۶۶۹۴، ۴۶۱/۳۰)

[۲])(كشف البارى: كتاب الأذان بَابُ وَضعِ الأكُفِّ عَلَى الرُكَبِ فِى الرُكُوعِ رقم الحديث:۷۹۰)

[۳])( شرح النووى على جامع الصحيح لمسلم كتاب أبواب الصّيد والذبائح،باب إباحة الجراد ۱۵۲/۲، فتح البارى: ۷۷۵/۱۲، عمدة القارى: ۱۶۳/۲۱)

[۴]) سنن الترمذى كتاب الأطعمة، باب ماجاء فى أكل الجراد رقم الحديث ۱۸۲۱، فتح البارى: ۷۷۵/۱۲، عمدة القارى: ۱۶۳/۲۱)

[۵])فتح البارى: ۷۷۵/۱۲، عمدة القارى: ۱۶۳/۲۱)

[۶])تهذيب التهذيب رقم الترجمة: ۴۵۳، ۲۲۵/۶، التاريخ الكبير للبخارى رقم الترجمة: ۱۰۱۵، ۳۲۰/۵، الجرح والتعديل رقم الترجمة ۱۲۲۴، ۳۱۸/۵، الكاشف رقم الترجمة: ۳۲۹۲، ۱۷۱/۲، تهذيب الكمال،رقم الترجمة: ۳۸۹۵، ۲۶۹/۱۷)

[۷])كتاب الثقات لابن حبان رقم الترجمة:۲۴۷۱، ۳۲۲/۲)

[۸])الجرح والتعديل : ۳۱۸/۵، تهذيب التهذيب :۲۲۵/۶، الكاشف: ۱۷۱/۲،تقريب التهذيب رقم الترجمة: ۳۹۵۶، ۵۸۱/۱، تهذيب الكمال،رقم الترجمة:۲۷۰/۱۷)

**قوله:**ابْنِ أَبِي أَوْفَى: دا راوی حضرت عبدالله بن ابی اوفی ﷺ دې. ددوئ تفصيلی حالات په كتاب الزكوة كښې تير شوی دی.([1])

**قوله:**سُفْيَانُ: دا مشهور امام حديث ابوعبدالله سفيان بن مسروق ثوری كوفی رحمة الله عليه دې. د دوئ حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ/بَابُ عَلاَمَةِ المُنَافِقِ كښې تير شوی دی.([2])

**قوله:**أَبُو عَوَانَةَ: دا راوی ابو عوانه بن عبدالله يشكری رحمة الله عليه دې. د دوئ تفصيلی حالات په بَدْءِ الوَحْيِ كښې تير شوی دی.([3])

**قوله:**إِسْرَائِيلَ: دا مشهور محدث ابو يوسف اسرائيل بن يونس بن ابی اسحاق همدانی سبيعی كوفی رحمة الله عليه دې. د دوئ تفصيلی حالات په كِتَابُ العِلْمِ/بَابُ مَنْ تَرَكَ بَعْضَ الاِخْتِيَارِ، مَخَافَةَ أَنْ يَقْصُرَ فَهْمُ بَعْضِ النَّاسِ عَنْهُ، كښې تير شوی دی([4]).

**تشريح: د ترجمة الباب مقصد**

حضرت شيخ الحديث مولانا زكريا رحمة الله عليه فرمائی چې د امام بخاری رحمة الله عليه په دې ترجمة الباب سره شائد مقصد دې طرفته اشاره كول دی چې د نبی كريم ﷺ نه مولخ خوړل ثابت دی. او دهغه حديث مبارك ضعف طرفته اشاره كوی. په كوم كښې چې دی چې كله نبی كريم ﷺ نه د مولخ متعلق تپوس اوشو نو نبی كريم ﷺ اوفرمائيل :**أكثر جنود الله لا آكله ولا أحرمه** چې مولخان دالله تعالى لوئې لښكرې دی. نه خو دا څه خورم او نه ئې حرام گرزوم([5]).

**قوله:**الجَرَادِ: د جيم په فتې سره، د جرادة جمع ده، او د جرادة اطلاق په مذكر او مؤنث دواړو باندې كيږی دا مولخ ته وائی([6]). په دې ښځې واړه وی او ښځې غټ.او دا شان دا سرهٔ، زيړ، سپين او مختلفو رنگونو كښې وی. او ددې شپږ پښې وی، دوه په مينځ كښې او دوه روستو.([7])

او دا د جرد نه مشتق دې. **لأنه لا ينزل على شئ إلا جرده**.([8]) يعنى دا په يو څيز (په فصل وغيره)

---

[1] (كشف البارى كتاب الزكوة باب صلاة الإمام ودعائه لصاحب الصدقة. رقم الحديث:۱٤۹۷)

[2] (كشف البارى:۲/۲۷۸)

[3] (كشف البارى: ۱/٤۳٤)

[4] (كشف البارى:٤/٥٤٦)

[5] الكنز الكنزى المتوارى : ۱۹/۱٥٥، سنن أبي داود كتاب الأطعمة باب: فى أكل الجراد رقم الحديث:۳۸۱۳)

[6] لسان العرب باب الجيم: ۲/۲۳٦، تاج العروس، فصل الجيم من باب الدال: ۲/۳۱۸)

[7] حيوة الحيوان، الجراد: ۱/۱۸۱)

[8] لسان العرب باب الجيم: ۲/۲۳٦، تاج العروس، فصل الجيم من باب الدال: ۲/۳۱۸، فتح البارى:۱۲/۷۷٤ عمدة القارى: ۲۱/۱٦۲)

باندې نه ورځي. مګر هغې لره ختموي.
ددې دوه اقسام دی. يو طيار يعنې الوتونکی، او دويم وثاب يعنې ټوپ وهونکې دې[1].

**د مولخ خوړلو حکم**

مولخ بالاجماع حلال دې[2]. خو ابن العربي په شرح د ترمذی کښې د حجاز او د اندلس په مولخانو کښې فرق بيان کړې دې، او وئيلی يې دی چې د اندلس مولخان ټول په ټوله ضرری دی. [3]لهذا که د يوې علاقې د مولخانو باره کښې معلوم شی چې هغه مضر صحت دی نو بيا به د هغې استعمال صحيح نه وی.[4]

**دځينو شوافعو مذهب:**

شوافعو کښې د علامه صميری رحمة الله عليه خيال دا وو چې نبی کريم ﷺ به مولخ خوړل نه خوښول.[5]

**دليل:** هغوئ د نبی کريم ﷺ دهغه روايت نه استدلال کوی کوم کښې چې نبی کريم ﷺ نه د مولخ متعلق تپوس اوشو، نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل "أكثر جنود الله لا آكله ولا أحرمه"[6] يعنې مولخان دالله تعالى ډير لوئې لښکر دی. خه نه دا خورم او نه يې حرام ګرزوم.

**جواب:** حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمائی چې دا روايت مرسل دې.[7]

البته بيا په دې خبره کښې اختلاف دې چې مولخ لره ذبح کول ضروری، او که بغير د ذبح کولو نه يې خوراك جائز دې؟

**د ائمه ثلاثه مذهب**

دائمه ثلاثه په نزد مولخ بغير د ذبح کولو نه خوړل جائز دی، که پخپله مړ شوې وی يا په يو څيز سره وهلې شوې وی، که ددې ښکار مسلمان کړې وی او که کافر.[8]

**دليل:** د جمهورو حضراتو دليل د نبی کريم ﷺ روايت دې: أحلت لنا ميتتان ودمان، فأما الميتتان

---

[1] فتح الباري: ٧٧٤/١٢ عمدة القاري: ١٦٢/٢١)

[2] شرح النووي على الجامع الصحيح لمسلم كتاب الصيد والذبائح، باب إباحة أكل الجراد ١٥٢/٢، المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح، باب إباحة أكل الجراد: ٣١٥/٩، فتح الباري: ٧٧٥/١٢، عمدة القاري: ١٦٢/٢١، ارشاد الساري: ٢٥٥/١٢)

[3] عارضة الأحوذي لابن العربي، كتاب الأطعمة، باب ما جاء في الدعاء على الجراد: ١٤/٨)

[4] فتح الباري: ٧٧٥/١٢)

[5] فتح الباري: ٧٧٥/١٢)

[6] سنن أبي داود كتاب الأطعمة، باب في أكل الجراد رقم الحديث ٣٨١٣)

[7] فتح الباري: ٧٧٥/١٢، ارشاد الساري: ٢٥٥/١٢، الكنز الكنزي المتواري: ١٥٥/١٩)

[8] شرح النووي على الجامع الصحيح لمسلم كتاب الصيد والذبائح، باب إباحة أكل الجراد ١٥٢/٢، فتح الباري: ٧٧٤/١٢، البيان في مذهب الإمام الشافعي، كتاب الحج، باب الأطعمة: ٥١٠/٤، عمدة القاري: ١٦٢/٢١، الدرمع الرد كتاب الذبائح: ٢١٦/٥، البحر الرائق كتاب الذبائح، فصل فيما يحل ولا يحل: ٣١٥/٨، المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح: ٣١٤/٩)

فالجراد والحوت، وأما الدمان فالطحال والكبد.[١]
زمونږ دپاره دوه مردار او دوه وينې حلالې كړې شوى دى. دوه مردار مولخ او مهى، او دوه وينې يعنى تورې (تلى) اور اينه (كليجى) ده. نومولخ او مهې بغير د ذبحې نه حلال دې.
**د مالكيو مذهب:** د مالكيو په نزد ددې ذ بح كول تسميې او نيت سره د جواز كل دپاره شرط دى.[٢]
بيا د مالكيه په نزد د مولخ ذبح كول دادى چې دا اوژلې شى، كه ددې سر پريكړې شى اوكه په كټوئى يا په اور كښې ژوندې پوخ كړى شى. خوكه په بو طريقه هم اونه وژلې شو، بلكه پخپله د وراندې نه مړ وى، نو ددې خوراك جائز نه دې.[٣]
**دليل:** مالكيه دقرآن ددې آيت نه استدلال كوى: ﴿حرمت عليكم الميتة...... الاية﴾ يعنى په تاسو باندې حرام شو مړ څناور، او مولخ كه ذبح نه كړې شو او د وراندې نه مړ وى نو دا هم ميتة كښې داخل دى. لهذا دابه هم حرام وى. څكه چې صرف صيد البحر بغير د ذبح نه بغير حلال دى. صيد البر بغير د ذبح نه حلال نه دى. او مولخ هم صيد البر دى. لهذا ددې ذبح كول هم ضرورى دى. البته ددې ذبح په حلق كښې ممكن نه ده، نو څنگه چې هم ممكن وى دا اووژلې شى، نودا به په ذبح كښې شمير وى.[٤]
**قوله:** غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ أَوْسِتًّا،
داشك شعبې ته راغلې دې چې اووه غزوات ئې اووئيل اوكه شپږ.[٥] حالانكه امام مسلم رحمة الله عليه او امام ترمذى رحمة الله عليه دشعبې په طريق دا روايت نقل كړې دې، او په هغې كښې د سَبْعَ غَزَوَاتٍ، اووه غزواتو ذكر دې.[٦]
**قوله:** كُنَّا نَأْكُلُ مَعَهُ الْجَرَادَ:
دلته د معيت نه يا خو صرف غزوه كښې معيت مراد دې، خوراك كښې نه، يا په خوراك

---

[١] موسوعة الإمام الشافعى، كتاب الصيد والذبائح، باب ذ كاة الجراد والحيتان: ٤٩٧/٥. البيان فى مذهب الإمام الشافعى، كتاب الحج، باب الأطعمة: ٥١٠/٤. المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح :٣١٤/٩. فتح البارى: ٧٧٤/١٢. عمدة القارى: ١٦٢/٢١. البحرالرئق كتاب الذبائح، فصل فيما يحل ولا يحل: ٣١٥/٨. الدرمع الرد كتاب الذبائح: ٢١٦/٥)

[٢] المنتقى شرح مؤطاإمام مالک، كتاب الصيد، الباب الثانى فى بيان ما يجوز أكله إلا بذكاة: ٢٥٨/٤. بداية المجتهد ونهاية المقتصد، كتاب الذبائح، هل يذكى الجراد: ١٠٩/٤. حاشية الدسوقى، باب الذكاة: ٣٧٨/٢)

[٣] المدونة الكبرى، كتاب الذبائح، ٦٤/٢. حاشية الدسوقى، باب الذكاة: ٣٧٨/٢. بداية المجتهد ونهاية المقتصد، كتاب الذبائح، هل يذكى الجراد: ١٠٩/٤)

[٤] المنتقى شرح مؤطاإمام مالک، كتاب الصيد، الباب الثانى ٢٥٨/٤: شرح ابن بطال: ٤٠٢/٥.)

[٥] فتح البارى: ٧٧٥/١٢)

[٦] الجامع الصحيح لمسلم كتاب الصيد، باب إباحة أكل الجراد رقم الحديث: ١٩٥٢. سنن الترمذى كتاب الأطعمة، باب ماجاء فى أكل الجراد رقم الحديث ١٨٢٢)

كښې معيت مراد دې، د دويم احتمال تائيد د ابو نعيم د روايت نه كيږي، په هغې كښې د وَيَأْكُلُ مَعَنَا (او نبى كريم مونږ سره خوراك اوفرمائيلو) الفاظ دى. [1]

| قَالَ سُفْيَانُ، وَأَبُوعَوَانَةَ، وَإِسْرَائِيلُ: عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى: «سَبْعَ غَزَوَاتٍ» |
| --- |

**قوله:** قَالَ سُفْيَانُ وَأَبُوعَوَانَه............

**دتعليقاتو تخريج:**

۱. سفيان: د سفيان تعليق لره دارمى موصولا نقل كړې دې. [2]

۲. ابو عوانه: د ابو عوانه تعليق لره امام مسلم رحمة الله عليه موصولا نقل كړې دې. [3]

۳. اسرائيل: د اسرائيل تعليق لره طبرانى موصولا نقل كړې دې. [4]

په دې درې واړو رواياتو كښې د اووۀ(۷) غزواتو ذكر دې.

**ترجمة الباب سره مناسبت**

دحديث دترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. [5]

## ۱۴-باب بَابُ آنِيَةِ الْمَجُوسِ وَالْمَيْتَةِ

| ۵۳۶۱- حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي رَبِيعَةُ بْنُ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلاَنِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيُّ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا بِأَرْضِ أَهْلِ الكِتَابِ، فَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ، وَبِأَرْضِ صَيْدٍ، أَصِيدُ بِقَوْسِي، وَأَصِيدُ بِكَلْبِي المُعَلَّمِ وَبِكَلْبِي الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ أَهْلِ كِتَابٍ: فَلاَ تَأْكُلُوا فِي آنِيَتِهِمْ إِلَّا أَنْ لاَ تَجِدُوا بُدًّا، فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا بُدًّا فَاغْسِلُوهَا وَكُلُوا، وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكُمْ بِأَرْضِ صَيْدٍ: فَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ وَكُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ المُعَلَّمِ فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ وَكُلْ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِي لَيْسَ بِمُعَلَّمٍ فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْهُ" |
| --- |

ترجمه: حضرت ابو ثعلبه حشنى ﷺ روايت كوى، فرمائى چې څه د نبى كريمﷺ په خدمت كښې حاضر شوم او عرض مې اوكړو چې اې دالله رسوله ﷺ! مونږ د اهل كتابو په زمكه كښې استوګن يو، نو مونږ دهغوئ په لوښو كښې خوراك كوؤ. او د ښكار په زمكه استوګن يو، نو څه دخپل غشى په ذريعه او دخپل تربيت يافته سپى او بغير تربيت يافته سپې په ذريعه ښكار كوم. نو حضور ﷺ اوفرمائيل: تا چې كوم بيان اوكړو چې ته د اهل كتابو په زمكه كښې استوګن يې نو د هغوئ په لوښو كښې خوراك مه كو. مګر دا چې د هغې نه بغير

---

[1] فتح البارى: ۷۷۵/۱۲، الكنز الكنزى المتوارى: ۱۵۵/۱۹.

[2] سنن الدارمى، كتاب الصيد باب فى أكل الجراد: رقم الحديث: ۲۰۱۰، ۱۲۶/۲)

[3] الجامع الصحيح لمسلم كتاب الصيد والذبائح باب إباحة الجراد: ۱۹۵۲)

[4] فتح البارى: ۷۷۶/۱۲)

[5] (عمدة القارى: ۱۶۲/۲۱)

بل څه چاره نه وی. که تاته څه ملاؤ نشی نو بیا هغه اووینځه او په هغې کښې خوراک اوکړه او تاچې کوم بیان اوکړو چې ته د ښکار په زمکه کښې اوسیږې، نو ته چې بسم الله اووائې او په غشی سره ښکار اوکړې نو هغه خوره. او ته چې د تربیت یافته سپې په ذریعه ښکار کوې نو دالله نوم پرې اخله (کله چې ته سپې ښکار پسې پریږدې) او ښکار خوره، او ته چې د کوم غیر تربیت یافته سپې په ذریعه ښکار اوکړې، که تا هغه ذبح کړو ( یعنی ښکار لا ژوندې وو او ته هغه ذبح کړې) نو هغه خوره.

٥٤٩٧ - حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ، قَالَ: لَمَّا أَمْسَوْا يَوْمَ فَتَحُوا خَيْبَرَ، أَوْقَدُوا النِّيرَانَ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «عَلاَمَ أَوْقَدْتُمْ هَذِهِ النِّيرَانَ؟» قَالُوا: لُحُومِ الحُمُرِ الإِنْسِيَّةِ، قَالَ: «أَهْرِيقُوا مَا فِيهَا، وَاكْسِرُوا قُدُورَهَا» فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ القَوْمِ، فَقَالَ: نُهَرِيقُ مَا فِيهَا وَنَغْسِلُهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَوْ ذَاكَ»

بل روایت د حضرت سلمة بن الاکوع ﷺ دې، فرمائی: کله چې د فتح خیبر په ورځ مابنام شو نو خلقو اورونه بل کړل، نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چې تاسو خلقو په کوم څیز باندې اوو بل کړې دې(یعنی په اور باندې څه پخوئی) خلقو په جواب کښې اووئیل چې د پاللې شوؤ خرو په غوښه باندې، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: څه چې په دې کښې دی هغه وارږوئی او (تاسو چې په کومو کټوؤ کښې غوښه پخوله) هغه ماتې کړئی، د خلقو نه یو کس اودریدو او عرض ئې اوکړو، دې کټوؤ کښې چې دننه څه دی هغه اوغورزوؤ او دا کټوئی اووینځو؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې داسې هم کولې شئ.

**تراجم رجال**

**قوله:** أَبُو عَاصِمٍ: دا امام ابوعاصم بن ضحاك بن مخلد بن مسلم شیبانی بصری رحمة الله علیه دې، ددوئ تفصیلی حالات په، كِتَابُ العِلْمِ باب ما جاء في العلم، کښې تیر شوی دی. [1]

**قوله:** حَيْوَةَ: دا راوی حیوة بن شریح بن صفوان بن مالك التجبی المصری رحمة الله علیه دې ددوئ حالات په، كِتَابُ فَضَائِلِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، کښې تیر شوی دی. [2] كِتَابُ فضائل أصحاب النبي ﷺ بَابُ مَنَاقِبِ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ رقم الحديث: ٣٦٩٣)

**قوله:** رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ: دا راوی ابو شعیب ربیعة بن یزید الایادی الدمشقی رحمة الله علیه دې ددوئ حالات په، بَابُ صَيْدِ القَوْسِ، کښې تیر شوی دی. [3]

**قوله:** أَبُو إِدْرِيسَ: دا راوی ابو ادریس عائذ الله بن عبد الله خولانی رحمة الله علیه دې. ددوئ

[1] (کشف الباری: ١٥٢/٣)
[2] (کشف الباری:
[3] (کشف الباری: كِتَابُ الذَّبَائِحِ وَالصَّيْدِ /بَابُ صَيْدِ القَوْسِ.)

حالات په، كِتَابُ الإِيمَانِ بَابٌ: عَلَامَةُ الإِيمَانِ حُبُّ الأَنْصَارِ. كښې تير شوى دى [١]
**قوله:** أَبُو ثَعْلَبَةَ دا راوى ابو ثابت ايمن بن ثابت مولى بنى ثعلبه الكوفى رحمة الله عليه دې.
ددوئ حالات په، كِتَابُ العِلْمِ/بَابُ مَنْ أَجَابَ الفُتْيَا بِإِشَارَةِ اليَدِ وَالرَّأْسِ. كښې تير شوى دى [٢]
**قوله:** المَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: دا راوى مكى بن ابراهيم بن بشير بن فرقد تميمى رحمة الله عليه دې ددوئ مفصل حالات په، كِتَابُ العِلْمِ/بَابُ مَنْ أَجَابَ الفُتْيَا بِإِشَارَةِ اليَدِ وَالرَّأْسِ، كښې تيرشوى دى [٣]
**قوله:** يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ: داد مشهور تابعى بزرګ دحضرت سلمه بن الاكوع ﷺ مولى، ابو خالد يزيد بن ابى عبيد اسلمى حجازى رحمة الله عليه دې ددوئ حالات په، كِتَابُ العِلْمِ/بَابُ إِثْمِ مَنْ كَذَبَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كښې تير شوى دى. [٤]
**قوله:** سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ: دا مشهور صحابى حضرت سلمة بن عمرو بن الاكوع اسلمى مدنى ﷺ دې. ددوئ حالات په، كِتَابُ العِلْمِ/بَابُ إِثْمِ مَنْ كَذَبَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كښې تير شوى دى. [٥]
**تشريح:** د باب وړومبې حديث باب صيد القوس كښې تير شوى دى او هلته ددې تشريح، د كفارو د لوښو د استعمال حكم تفصيل سره تير شوى دى. [٦]
**دحديث نه د ترجمة الباب ثبوت**
په ترجمة الباب كښې د آنِيَةِ المَجُوسِ ذكر دې. حالانكه د باب په روايت كښې د اهل كتابو د اوانى ذكر دې؟
حضرات شارحينو د حديث د ترجمة الباب سره د مناسبت دوه وجوهات بيان كړى دى.
**اوله وجه:** يوه وجه داده چې چونكه د نجاستونو نه ځان نه بچ كول په اهل كتابو او مجوسو كښې مشترك دى، ځكه امام بخارى د يو نه دبل حكم ثابت كړې دې. [٧]
چنانچه د مجوسيانو ذبيحه مرداره ده او هغوئ مرداره ګټوؤ كښې پخوى، نو اهل كتاب خو خنزير پخوى او په لوښو كښې شراب اړدى. لهذا هركله چې داهل كتابو د لوښو د

[١](كشف البارى: ٤٨/٢)
[٢](كشف البارى: كتَابُ الذَّبَائِحِ وَالصَّيْدِ/بَابُ صَيْدِ القَوْسِ.)
[٣](كشف البارى: ٤٨١/٢)
[٤](كشف البارى: ١٨٢/٤)
[٥](كشف البارى: ١٨٢/٤)
[٦](كشف البارى: كتَابُ الذَّبَائِحِ وَالصَّيْدِ/بَابُ صَيْدِ القَوْسِ.)
[٧]الكنزى المتوارى على تراجم البخارى، كتَابُ الذَّبَائِحِ وَالصَّيْدِ/بَابُ آنِيَةِ المَجُوسِ :ص:٢٠٥، شرح الكرمانى : ٩٢/٢٠.)فتح البارى: ٧٧٧/١٢، عمدة القارى: ١٦٤/٢١، ارشاد السارى: ٢٥٦/١٢، شرح ابن بطال: ٤٠٣/٥).

وينخلونه پس د استعمال اجازت شته دې، نوداشان د مجوسيانو لوښي هم استعمالولې شي.([1])
او دويمه وجه شايد چې امام بخاري رحمة الله عليه مجوسيانو لره اهل كتاب گڼړي.([2])

**دحافظ ابن حجر رائې**

حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمائي چې ځينې طرق كښې د مجوسيانو هم ذكر شته دې.
چنانچه سنن ترمذي كښې روايت دې: عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قُدُورِ الْمَجُوسِ، فَقَالَ: «أَنْقُوهَا غَسْلًا، وَاطْبُخُوا فِيهَا»([3])
دنبي كريم ﷺ نه دمجوسيانود كټوؤ(د استعمال باره كښې) تپوس اوشو نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: هغه ښه وينځئ، او په هغې كښې پخلې كوئي.
حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمائي: امام بخاري رحمة الله عليه په ترجمة الباب سره دهغه طرف ته اشاره كړې ده. امام بخاري رحمة الله عليه عمومًا داشان كوي چې ځينې طرق چې د هغوئ په شرط باندې پورا نه وي نو هغه په ترجمة الباب كښې راوړي او حديث د خپل شرط مطابق بل راوړي.([4])

**قوله:الْمَجُوسِ**: دميم په فتحه او د جيم په ضمه او په واؤ ساكن سره، كوم خلق چې د نمر، سپوږمۍ اود اورعبادت كوي، هغوئ ته مجوس وائي.([5])

باقي چې كوم روايت دې: الْقَدَرِيَّةُ الْمَجُوسِ هذه الامة: قدريه ددې امت مجوسيان دي.([6])
نو ددې وجه داده چې ځنگه چې مجوس خير لره د نور طرف ته منسوب كوي، او شر لره د ظلمت طرف ته، يعني خير دنور نه پيدا كيږي او شر د ظلمت نه پيدا كيږي. داشان قدريه هم خير د الله تعالى طرف ته منسوب كوي او شر لره د انسان طرف ته، حالانكه د خير او شر دواړو خالق الله تعالى دې.([7])

**قوله:الْمَيْتَةَ**: ترجمة الباب كښې امام بخاري رحمة الله عليه د الْمَيْتَةَ ذكر هم كړې دې.ابن المنير فرمائي: نبه بذكر الميتة على أن الحمر لما كانت محرمة لم تؤثر فيها الذكاة.([8])

---

[1] فتح الباري: ١٢/٧٧٧)
[2] شرح الكرماني: ٢٠/٩٢، فتح الباري: ١٢/٧٧٧، عمدة القاري: ٢١/١٦٤، ارشاد الساري: ١٢/٢٥٦)
[3] سنن الترمذي كتاب الأطعمة، باب ماجاء في الأكل في آنية الكفار رقم الحديث: ١٧٩٦)
[4] فتح الباري: ١٢/٧٧٧،عمدة القاري:٢١/١٦٤).
[5] الملل والنحل ص:٧٢٨، لسان العرب باب الميم: ١٣/١٣، المعجم الوسيط ص:٨٥٥)
[6] سنن أبي داود كتاب السنة، باب في القدر، رقم الحديث: ٤٦٩١)
[7] تاج العروس، فصل الميم من باب السين: ٤/٢٤٥، لسان العرب باب الميم: ١٣/٣١، النهاية لابن أثير، حرف الميم: ٢/٦٣٦)
[8] الكنزى المتواري على تراجم أبواب البخاري لابن المنير، كِتَابُ الذَّبَائِحِ وَالصَّيْدِ/بَابُ آنِيَةِ الْمَجُوسِ :ص:٢٠٥، فتح الباري: ١٢/٧٧٧)

امام بخاري رحمة الله عليه په ترجمة الباب كښې دميتة ذكر كولو سره دې خبرې طرف ته تنبيه كړې ده چې اگر كه خرونه ذبح كړې شوي وو او دهغې خوښه پخيدله چې د حرمت حكم يې راغلو، نو حمر چونكه حرام او كرزولې شو په دې وجه ددوئ د حلت دپاره ذبح مؤثر ښاتې نه شوه. ځكه چې ذبح په حلالو ځناورو كښې مؤثره وي، په حرام كښې نه.

**قوله:** عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ قَالَ: لَمَّا أَمْسَوْا

د باب دويم حديث په كِتَابُ الْمَظَالِمِ وَالْغَصْبِ بَابٌ: هَلْ تُكْسَرُ الدِّنَانُ الَّتِي فِيهَا الْخَمْرُ كښې تير شوى دى (١)

**قوله:** أَمْسَوْا: دباب افعال نه أمسى يمسى، د ماښام په وخت كښې داخليدل. (٢)

**قوله:** أَوْقَدُوا النِّيرَانَ: أَوْقَدُوا د باب افعال نه، په معنى د اور بلولو. (٣)

**قوله:** النِّيرَانَ: (دنون په كسرې، دياء په سكون سره) دا دالنار جمع ده په معنى د اور. (٤)

**قوله:** لُحُومِ الْحُمُرِ الإِنْسِيَّةِ: إِنْسِيَّةٌ دهمزې كسرې، نون ساكن، په سين مكسور او ياء مشدد مفتوح سره، په معنى د پاللې شوې ځناور، كورونو كښې اوسيدونكى. (٥) د خرونو متعلق تفصيل به مخكښې په باب لُحُومِ الْحُمُرِ الإِنْسِيَّةِ كښې راځى.

**قوله:** أَهْرِيقُوا: په دې كښې هاء زائده ده، اصل كښې أريقوا دې، دباب افعال أراق، يريق نه، په معنى د اوبه وغيره غورزول. (٦)

**قوله:** قُدُورَ: دا د القدر (دقاف په كسرې، په دال ساكن سره) جمع ده، بمعنى گتونى. (٧)

**قوله:** نُهَرِيقُ مَا فِيهَا: دلته استفهام محذوف دې. يعنى انهريق ما فيها، گتوؤ كښې چې څه دى آيا مونږ هغه وارؤ؟ (٨)

**قوله:** فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْ ذَاكَ: نه د لوښو ماتولو او د وينځلونه پس دهغې په استعمالولو كښې تخيير طرف ته اشاره ده.

حضرات شارحين فرمائى چې رومبې نبى كريم ﷺ دوحى يا د اجتهاد په ذريعه ددې لوښو د ماتولو حكم وركړو. او بيا د ماتولو هغه حكم منسوخ شو يا په اجتهاد كښې بدلون

---

(١) (كشف البارى كتاب المظالم والغصب باب: هل تكسر الدنان التى فيها الخمر: ٢٤٧٧)

(٢) لسان العرب باب الميم: ١٣/١١٠)

(٣) لسان العرب باب الواؤ: ٣٦٢/١٥)

(٤) لسان العرب باب النون: ٣٢٢/١٤، النهاية لابن، حرف النون: ٨٠٣/٢)

(٥) لسان العرب باب الهمزة: ٢٣٣/١، النهاية أبير، حرف الهمزة: ٨٠٣/٢. شرح الكرمانى: ٩٣/٢٠)

(٦) تاج العروس. فصل الراء من باب القاف: ٣٦٦/٦، عمدة القارى: ١٦٥/٢١).

(٧) لسان العرب باب القاف: ٦٠/١١)

(٨) ارشاد السارى: ٢٥٧/١٢)

راغلو.(١)

**ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عينى رحمة الله عليه فرمائى چې ددې حديث مبارك په باب كښې د راوړلو وجه داده چې كله د اهل خرونو حرمت ثابت شو نو دا دميته په شان شو او كله چې نبى كريم ﷺ د هغه لوښو د استعمال اجازت وركړو كومو كښې چې د خرونو غوښه پخيدهٔ، نو داشان به د مجوسيانو د لوښو استعمال د وينځلو نه پس جائز وى (٢)

## ١٥ - بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى الذَّبِيحَةِ، وَمَنْ تَرَكَ مُتَعَمِّدًا

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: «مَنْ نَسِيَ فَلاَ بَأْسَ» وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى: {وَلاَ تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ} [الأنعام: ١٢١]: «وَالنَّاسِي لاَ يُسَمَّى فَاسِقًا» وَقَوْلُهُ: {وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ} [الأنعام: ١٢١]

**د ترجمة الباب مقصد**

امام بخارى رحمة الله عليه په ترجمة الباب كښې مَنْ تَرَكَ مُتَعَمِّدًا او دې نه پس د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ تعليق كړو او د هغه مسلك د ترجيح طرفته ئې اشاره كړې ده كوم كښې چې ترك تسمية ناسيا سره ذبيحه حرامه نه ګرزى.(٣)

دې نه پس امام بخارى رحمة الله عليه اوفرمائيل: والناس لايسمى فاسقا، هيرونكې فاسق نه وى. دې سره ئې د قرآن كريم آيت ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ طرفته اشاره كړې ده. كوم كښې چې الله تعالى فرمائى چې په كومه ذبيحه باندې دالله تعالى نوم نه وى اخستې شوې، هغه مه خورى، ځكه چې د الله تعالى نوم نه اخستل يو فاسقانه طريقه ده.

ددې نه معلومه شوه چې، فسق، د ترك تسميه عمدا صفت دې. يعنى په قصد سره د الله تعالى نوم نه اخستل فسق دې. لهذا چې كوم حكم دې چې په كومه ذبيحه باندې دالله تعالى نوم نه وى اخستې شوې د هغې د نه خوراك دحكم به هم د عمد سره خاص وى.يعنى كله چې عمد سره په هغې دالله تعالى نوم نه وى اخستې شوې.(٤) كښې شامل نه وى. لهذا چې په ذبيحه باندې دالله تعالى نوم په هيره نه وى اخستلې شوې نو هغه خوراك جائز دې.

**دتعليق تخريج**

دحضرت ابن عباس ﷺ تعليق لره دار قطنى موصولا نقل كړې دې. (٥)

**قوله:** ﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ﴾ (الانعام: ١٢١)

---

(١) شرح الكرمانى: ٩٣/٢٠ عمدة القارى: ١٦٥/٢١)

(٢) (عمدة القارى: ١٦٥/٢١، الكنز الكنزى المتوارى: ١٥٧/١٩)

(٣) فتح البارى: ٧٧٨/١٢، عمدة القارى: ١٦٦/٢١، إرشاد السارى: ٢٥٧/١٢)

(٤) (ارشاد السارى: ٥٨/١٢، المغنى لابن قدامة، كتاب الصيد، والذبائح: ٣١/٩، تفسير روح المعانى، سورة الانعام: ١٢١، ٣٦١/٨، احكام القرآن للجصاص، سورة الانعام: ١٢١، ٩/٣)

(٥) دارقطنى، باب الصيد والذبائح، رقم الحديث: ٤٧٥٩، ١٩٨/٤، تغليق التعليق: ٥١٢/٤)

او شیطانان دخپلو دوستانو په زړونو کښې اچوي چې هغوئ تاسو سره جنګ اوکړي، او که تاسو دهغوئ خبره اومنله نو تاسو هم مشرکان شوئ.
امام بخاری رحمة الله علیه دې آیت سره په حقیقت کښې هغه روایت طرف ته اشاره کړې ده.
عن ابن عباس فی قوله عزوجل وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ قال: خاصمهم المشرکون فقالوا: ما ذبح الله فلا تاکلوا وما ذبحتم أنتم أکلتموه.(١)
یعنی مشرکانو به مسلمانانو سره بحث کولو او وئیل به ئې چې کوم لره الله تعالی ذبح کړی نو هغه تاسو نه خورئې او کوم لره چې تاسو ذبح کړئې نو هغه تاسو خورئې.
ددې نور وضاحت د سنن ابی داؤد په یو روایت سره کیږي، په هغې کښې دی: جاءت الیهود إلی النبی صلی الله علیه وسلم فقالوا: نأکل مما قتلنا ولا نأکل مما قتل الله (٢)
یهودیان د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او وې وئیل چې کوم مونږ قتل کړو هغه مونږ خورو او چې کوم الله تعالی قتل کړي نو هغه دې مونږ نه خورو.؟ نو په دې باندې دا آیت مبارك نازل شو: ﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ﴾ (٣)

**دتسمیة علی الذبیحة حکم:**

**داحنافو او مالکیه مذهب:** د احنافو او مالکیه په نزد ئې که عمداً په ذبیحه باندې تسمیه او نه وئیله نو ذبیحه حلاله نه ده. او که ترې نه هیره شوه، نو بیا به ذبیحه حلاله وي.(٤)
**دحنابله مذهب:** دحنابله په نزد عمداً، نسیاناً دواړو صورتونو کښې تسمیه شرط ده.(٥)
**دشوافعو مذهب:** د امام شافعی رحمة الله علیه په نزد تَسْمِيَةٌ عَلَى الذَّبِيحَةِ مسنون ده، واجب نه ده. لهذا ترك تسمیه که عمدا وي او که نسیانا، ذبیحه به حرامه نه وي. (٦)
البته د شوافعو په مسلك کښې دا تفصیل هم شته چې که د ذبح په وخت عمدا بسم الله ترك کورنکی دا تهاون او معمولی اوګنړل او بسم الله ئې پریخودله نو په دې صورت کښې به د شوافعو په نزد هم ذبیحه حلاله نه وي. (٧)

---

(١) سنن النسائی کتاب الضحایا، باب قول الله عزوجل ولا تاکلوا مما لم یذکر اسم الله رقم الحدیث:٤٤٤٢)
(٢) سنن أبی داود کتاب الأضاحی، باب فی ذبائح أهل الکتاب رقم الحدیث:٢٨١٩).
(٣) الجامع لأحکام القرآن للقرطبی سورة الأنعام: ١٢١، ٩١/٤)
(٤) الدرمع الرد کتاب الذبائح: ٢١٠/٥، البحرالرائق کتاب الذبائح : ٣٠٦/٨، الفتاوی العالمکیریة: کتاب الذبائح الباب الأول: ٢٨٥/٥، المدونة الکبری کتاب الصید: ٥١/٢ المنتقی شرح مؤطا إمام مالك، کتاب الذبائح، ماجاء فی التسمیة علی الذبیحة: ٢٠٦/٤، حاشیة الدسوقی،باب الذکاة: ٣٦٥/٢، بدایة المجتهد، کتاب الذبائح، حکم التسمیة علی الذبیحة: ١٢١/٤)
(٥) المغنی لابن قدامة کتاب الصید والذبائح:٣١٠/٩)
(٦) کتاب الأم کتاب الصید والذبائح، باب تسمیة الله عزوجل عند إرسال ما یصطادبه: ٤٧٥/٥، المجموع شرح المهذب، باب الأضحة: ٤١٠/٨، فتح الباری:٧٥٠/١٢، شرح الکرمانی:٧٨/٢٠)
(٧) کتاب الأم کتاب الصید والذبائح، باب ذبائح أهل الکتاب: ٤٩١/٥.)

د جمهورو او شوافع حضراتو دلائل هم هغه دی کوم چې په بَابُ التَّسْمِيَةِ عَلَى الصَّيْدِ کښې تیر شوی دی

حديث نمبر ۵۱۷۹ صفحه نمبر ۷۳

۵۴۹۸- حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الحُلَيْفَةِ، فَأَصَابَ النَّاسَ جُوعٌ، فَأَصَبْنَا إِبِلًا وَغَنَمًا، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُخْرَيَاتِ النَّاسِ، فَعَجِلُوا فَنَصَبُوا القُدُورَ، فَدُفِعَ إِلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِالقُدُورِ فَأُكْفِئَتْ، ثُمَّ قَسَمَ فَعَدَلَ عَشَرَةً مِنَ الغَنَمِ بِبَعِيرٍ، فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ، وَكَانَ فِي القَوْمِ خَيْلٌ يَسِيرَةٌ، فَطَلَبُوهُ فَأَعْيَاهُمْ، فَأَهْوَى إِلَيْهِ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِهَذِهِ البَهَائِمِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الوَحْشِ، فَمَا نَدَّ عَلَيْكُمْ مِنْهَا فَاصْنَعُوا بِهِ هَكَذَا»

ترجمه: حضرت رافع بن خدیج ﷛ فرمائي : مونږ دحضور نبی کریم ﷺ سره په ذی الحلیفه کښې وو ، خلق اوږی شو ، بیا مونږ ته (په غنیمت کښې ) اوښان او چیلۍ ملاؤ شوې، او نبی کریم ﷺ دټولو خلقو نه وروستو وو ، او خلقو جلدی جوړه کړه (یعنی دنبی کریم ﷺ انتظار يې اونه کړو او د تقسیم نه وړاندې يې څناور ذبح کړل گتوئی يې (په نغرۍ) کیخودې. کله چې نبی کریم ﷺ د خلقو خوا ته راغلل نو حضور علیه السلام د گتوؤ د اړولو حکم اوکړو ، بیا (يې د غنیمت مال) تقسیم کړو ، داشان چې لس چیلۍ يې دیو اوښ برابر کړې، د هغې نه یو اوښ اوتښتیدو ، په جماعت کښې اسونه کم وو ، هغوئ دا رانیول اوغوښتل خو ناکام شو ، په دې کښې یو کس هغه طرف ته غشې اوویشتو ، نو الله تعالی هغه ایسار کړو ، نبی کریم اوفرمائیل : په دې څناورو کښې هم د وحشی څناورو په شان تښتیدونکی وی، هرکله چې یو څناور اوتښتی نو هغه سره داشان کوئی.

قَالَ: وَقَالَ جَدِّي: إِنَّا لَنَرْجُو، أَوْ نَخَافُ، أَنْ نَلْقَى العَدُوَّ غَدًا، وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى، أَفَنَذْبَحُ بِالقَصَبِ؟ فَقَالَ: "مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ فَكُلْ، لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ، وَسَأُخْبِرُكُمْ عَنْهُ: أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الحَبَشَةِ"

راوی عبایه وائي چې نیکه (حضرت رافع بن خدیج ﷛) عرض اوکړو چې زمونږ دا امید دې یا يې داسې اووئیل چې مونږ ویریږو چې صبا به زمونږ مقابله دښمن سره وی، او مونږ سره چاړه نشته، نو آیا مونږ بانس سره ذبح کولې شو؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې کوم څیز وینه تویوی او په دې باندې دالله تعالی نوم اخستې شوې وی نو هغه خوړلې شئ، لیکن غاښونه او نوکونه نه دی پکار، ددې متعلق درته اووایم چې غاښ هډوکې دې اونوك دحبشیانو چاړه ده.

تراجم رجال

**قوله:** مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ: داراوی ابوسلمه موسی بن اسماعیل التبوذکی البصری دې، ددې

حالات په، بَدْءِ الوَحْيِ كښې تير شوى دى. (١)

قوله: أَبُو عَوَانَةَ: دا راوى ابو عوانه وضاح بن عبدالله يشكرى رحمة الله عليه دې، ددوئ تفصيلى حالات په، بَدْءِ الوَحْيِ كښې تير شوى دى. (٢)

قوله: سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ: دا راوى سعيد بن مسروق ثورى كوفى رحمة الله عليه دې ددوئ حالات په، بَابُ الأَذَانِ، كښې تير شوى دى. (٣)

قوله: عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ: دا راوى عباية بن رفاعه بن رافع بن خديج الانصارى رحمة الله عليه دې، ددوئ حالات په، كِتَابُ الجُمُعَةِ كښې تير شوى دى. (٤)

قوله: رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ: دا راوى ابو عبدالله رافع بن خديج بن عدى الانصارى الحارثى ﷺ دې. ددوئ حالات په، كتاب مَوَاقِيتِ الصَّلاَةِ، كښې تير شوى دى. (٥)

تشريح: دا حديث پاك په كِتَابِ الشَّرِكَةِ بَابُ قِسْمَةِ الغَنَمِ كښې هم تير شوې دې. (٦)

قوله: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الحُلَيْفَةِ: مونږ رسول كريم ﷺ سره په ذوالحليفه كښې وو.

قوله: ذِي الحُلَيْفَةِ: حليفة په تصغير سره، په دې نوم دوه ځايونه دى، يوځائې د ذوالحليفه په نوم دې چې مدينې منورې سره نزدې د يو ځائې نوم دې. هغې ته ميقات مدينه هم وائى.
او دويم ځائې ارض تهامه سره د طائف او مكې مكرمې تر مينځه د يو ځائې نوم دې. او دلته د ذوالحليفه نه هم دا ځائې مراد دې. (٧)

قوله: وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُخْرَيَاتِ النَّاسِ: نبى كريم ﷺ د خلقو نه روستو وو

قوله: أُخْرَيَاتِ: د همزې په ضمې سره، په خاء ساكن او د راء په فتحې سره، دا د أُخرٰى جمع ده، وئيلې كيږى چې جاء فى أُخْرَيَاتِ النَّاسِ، هغه په آخر كښې راغلو. (٨) او نبى كريم ﷺ به په دې وجه دلښكر نه روستو وو چې د لښكر حفاظت اوكړى او څوك كمزورې كس د لښكر نه روستو پاتې نشى. (٩)

---

(١) (كشف البارى: ٤٣٣/١)
(٢) (كشف البارى: ٤٣٤/١)
(٣) (كشف البارى كتاب الأذان بَابُ مَنْ شَكَا إِمَامَهُ إِذَا طَوَّلَ: رقم الحديث ٧٠٥)
(٤) (كشف البارى كتاب الجمعة بَابُ المشى إلى الجمعة رقم الحديث: ٩٠٧)
(٥) (كشف البارى كِتَابُ مَوَاقِيتِ الصَّلاَةِ بَابُ وَقْتِ المَغْرِبِ رقم الحديث: ٥٥٩)
(٦) (كشف البارى كِتَابُ الشَّرِكَةِ بَابُ قِسْمَةِ الغَنَمِ رقم الحديث: ٢٤٨٨)
(٧) معجم البلدان: ٢٩٥/٢، فتح البارى: ٧٨٠/١٢، عمدة القارى: ١٦٧/٢١، إرشاد السارى: ٢٦٠/١٢ الكوثر الجارى: ١٥٦/٩)
(٨) تاج العروس، فصل الهمزة من باب الراء: ١٠/٣، لسان العرب باب الهمزة: ٨٨/١)
(٩) فتح البارى: ٧٨٠/١٢، إرشاد السارى: ٢٦٠/١٢)

**قوله:** فَعَجِلُوا فَنَصَبُوا القُدُورَ: يعنى حضرات صحابه كرامو جلد اوكړه او كټونى يئ (په اور) كيخودې، سنن ابى داؤد كښې روايت دې:

فانطلق ناس من سرعان الناس فذبحوا ونصبوا قدورهم قبل أن يقسم. (١)

روان خلقو كښې كسان وړاندې لاړل او هغوئ د تقسيم نه مخكښې څه څناور ذبحه كړل او (دغوښې پخولو دپاره يئ) كټوئى په نغرو كيخودې.

او صحابه كرامو رضى الله عنهم اجمعين جلدى په دې وجه اوكړه څكه چې وړاندې تير شوى دى أَصَابَ النَّاسَ جُوعٌ: خلق اوږى شوى وو. (٢)

**قوله:** فَدُفِعَ إِلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دُفِعَ فعل مجهول، بمعنى وصل ده. (٣) يعنى نبى كريم ﷺ چې په آخرى صفونو كښې وو، هغه خلقو ته وراورسيدو.

**قوله:** فَأَمَرَ بِالقُدُورِ فَأُكْفِئَتْ: نبى كريم ﷺ د كټوؤ متعلق حكم وركړو، نو هغه واړولې شوې.

**قوله:** فَأُكْفِئَتْ: أُكْفَأَ باب افعال نه، په معنى د اړولو، التا كولو. (٤)

اصحاب الظواهر ددې حديث نه استدلال كوى او فرمائى چې د ذبحې دحلاليدو دپاره شرط دادې چې ذابح د ذبحې مالك وو، يا د مالك د طرفه د ذبح كولو اجازت وى، كنى بيا به مرداره وى څكه حديث كښې نبى ﷺ چې صحابه كرامو كوم اوښان ذبح كړل هغوئ دهغې مالكان نه وو. په دې وجه نبى كريم ﷺ دهغې كټوؤ واړولې. (٥)

**جواب:** ددې جواب دادې چې داصحاب الظواهر لره ددې حديث نه استدلال كول درست نه دى. څكه چې حديث كښې دا نشته چې هغه غوښه مرداره وه، څكه يئ د اړولو اوغورزولو حكم وركړو، بلكه حديث كښې صرف دادى چې نبى كريم ﷺ دپتيلو د اړولو حكم وركړو، او دا د مختلفو وجوهاتو په وجه سره وو. (٦)

**د كټوؤ داړولو وجه:** ددې يوه وجه دا وه چې دا خلق په دارالاسلام كښې داخل شوى وو، او دلته مال غنيمت لا تقسيم شوې نه وو. او دارالاسلام كښې د داخليدو نه وړاندې وړاندې د مال غنيمت نه څيزونه خوړلې څكلې شى خو دار الاسلام كښې دداخليدو نه پس د تقسيم نه وړاندې مال غنيمت نه خوراك كول درست نه دى. (٧)

---

(١) سنن أبي داود كتاب الأضاحي، باب في الذبيحة بالمروة، رقم الحديث : ٢٨٢١، فتح البارى: ٨٠/١٢)

(٢)فتح البارى:٧٨١/١٢، إرشاد السارى:٢٦٠/١٢)

(٣)فتح البارى:٧٨١/١٢، إرشاد السارى:٢٦٠/١٢)

(٤) لسان العرب باب الكاف: ١١٣/١٢، النهاية لابن أثير حرف الكاف: ٥٤٧/٢)

(٥) المحلى بالآثار لابن حزم، كتاب التذكية: ١٤٨/٦)

(٦) إعلاء السنن، كتاب الذبائح، باب ذبح الحيوانات من المغانم قبل القسمة: ٩٩/١٧).

(٧)فتح البارى:٧٨١/١٢، إرشاد السارى:١٦٠/١٢، شرح الكرمانى:٩٤/٢٠، الكوثر الجارى: ١٥٧/٩، الدرمع الرد، كتاب الجهاد باب المغنم وقسمته: ٢٥٤/٣، الفتاوى العالمكيرية، كتاب السير الباب الرابع فى الغنائم وقسمتها: ٢٠٩/٢)

**دویمه وجه:** او دویمه وجه ئې دا لیکلې ده چې په دې موقع خلقو د خپل حاجت او ضرورت مطابق وانه اخستل، بلکه د نبی کریم ﷺ د انتظار کولو نه بغیر دضرورت نه زیات واخستل اودا جائز نه وو. ځکه نبی کریم ﷺ کټوئی واړولې او هغوئ ته ئې تنبیه اوفرمائیله.[۱]

**یو بل اشکال او د هغې جواب:** دلته دا اشکال کیدیشی چې غوښه خو مال دې او نبی کریم ﷺ دمال ضائع کولو نه منع فرمائیلې ده. بیا نبی کریم ﷺ کټوئی ولې واړولې او غوښه یې ضائع کړه؟

**جواب:** علامه نووی رحمة الله علیه فرمائی چې نبی کریم ﷺ کټوئی واړولې او صرف خوروه او اوبه وغیره یې بهیولې وې او غوښه یې نه وه ضائع کړې.[۲]

**اشکال:** لیکن په دې جواب د امام په ابی داؤد روایت سره شبه کیږی، ځکه چې په هغې کښې دی: إِذْ جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي عَلَى قَوْسِهِ، فَأَكْفَأَ قُدُورَنَا بِقَوْسِهِ، ثُمَّ جَعَلَ يُرَمِّلُ اللَّحْمَ بِالتُّرَابِ،[۳]

یعنی نبی کریم ﷺ په خپلې لیندې باندې ادانړه وهلې وه او تشریف یې راوړو، نو نبی کریم ﷺ دلیندې په ذریعه زمونږ کټوئی واړولې. بیا ئې غوښه بناورو کښې اوغرزوله.

نو دې روایت کښې هم تصریح ده چې نبی کریم ﷺ غوښه په بناؤرو کښې اوغورزوله.

**جواب:** دا شبه په دې وینا سره لرې کولې شی چې غوښه په زمکه غورزولو سره ددې ضائع کیدل لازم نه رازی ځکه چې دا په وینځلو سره استعمال کښې راوستې شی.[۴]

**دویم جواب:** او دا جواب هم کیدې شی چې عامو حالاتو کښې اګر چې یو څیز ضائع کول جائز نه دی لیکن د زجر و تنبیه په وخت کښې کولې شی.[۵]

**قوله:** ثم قسم فعدل عشرة من الغنم ببعير: نبی کریم ﷺ لس چیلی د یو اوښ برابرې اوګرزولې

**قوله:** فعدل: عَدَلَ د باب ضرب نه عدل الشئ بالشئ، یو څیز دبل څیز سره برابرول.[۶]

قربانئ کښې اووه چیلې د یو اوښ برابر وی. یعنی یو اوښ کښې اووه حصې کیدیشی حالانکه دلته نبی کریم ﷺ لس چیلی د یو اوښ برابرې اوګرزولې، شائد چې ددې وجه دا وه چې اوښان کم وو او چیلی زیاتې وې. یا اوښان څاربه وو او چیلی کمزورې وې، ځکه نبی

---

[۱] فتح الباری:۷۸۱/۱۲
[۲] شرح النووی علی جامع الصحیح لمسلم کتاب الأضاحی،باب جواز الذبح بکل ما أنهر الدم ۱۵۷/۲. فتح الباری: ۷۸۱/۱۲
[۳] سنن أبی داود کتاب الجهاد، باب فی النهی عن النهبی إذا کان فی الطعام قلة فی أرض العدو رقم الحدیث:۲۷۰۵. فتح الباری:۷۸۱/۱۲
[۴] فتح الباری:۷۸۱/۱۲
[۵] فتح الباری:۷۸۵/۱۲
[۶] تاج العروس، فصل العین من باب اللام: ۱۰/۸. لسان العرب باب: ۸۵/۹

كريم ﷺ لس چيلي ديو اوښ برابر اوګرزولې (١)

قوله: فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ: په هغې کښې يو اوښ اوتښتيدو.

قوله: فَنَدَّ: نَدَّ يَنِدُّ باب ضرب نه، نَدَّ البَعِيرُ د اوښ اوتريدل او تښتيدل. (٢)

قوله: وَكَانَ فِي القَوْمِ خَيْلٌ يَسِيرَةٌ: خلقو سره اسونه ډير کم وو. مطلب دا دې چې که سوارۀ زيات وې نو بيا به تښتيدلې اوښ رانيولې شوې وو، ليکن اسونه کم وو ځکه هغه په قابو کښې نه راتلو. (٣)

قوله: فَطَلَبُوهُ فَأَعْيَاهُمْ: خلق هغه پسې شو ليکن هغه خلق ستړي کړل.

قوله: أَعْيَا: د عي نه د باب افعال صيغه ده. د أَعْيَا، يُعْيِ معنى ستړى کول دى. (٤)

قوله: فَأَهْوَى إِلَيْهِ رَجُلٌ: يو کس هغه طرف ته غشي اوويشتو، ددې اراده يې اوکړه.

قوله: أَهْوَى: د باب افعال نه، ديو ځيز طرفته قصد کول. (٥)

قوله: رَجُلٌ: حافظ ابن حجر رحمة الله عليه فرمائى ددې رجل نوم معلوم نشو. (٦)

قوله: فَحَبَسَهُ اللَّهُ: الله تعالى هغه اودرولو، يعنى هغه په غشي اولګيدو او هغه اودريدو. (٧)

قوله: إِنَّ لِهَذِهِ البَهَائِمِ أَوَابِدَ

قوله: أَوَابِدَ: دا د آبدة جمع ده، هغه ساتلې شوې ځناور چې اوتريږى او خلقو نه اوتښتى. (٨)

قوله: فَاصْنَعُوا بِهِ هَكَذَا: يعنى داسې پاللې شوې ځناور چې هغه اويريږى اوپه قابو کښې نه راځى نو دداسې ځناور حکم د ښکار په شان دې. يعنى لکه څنګه چې يو ښکارى ښکار لره په يو تيره ځيز وغيره باندې زخمى کړى او هغه د ذبح کولو نه وړاندې مړ شي نو هغه حلال دې، داشان چې کوم ځناور اويريږى او په قابو کښې نه راځى او هغه په تيره ځيز سره زخمى کړې شي نو هغه حلال دې (٩) نور تفصيل به په بَابُ مَا نَدَّ مِنَ البَهَائِمِ کښې راشي.

قوله: إِنَّا لَنَرْجُو، أَوْ نَخَافُ: راوى ته شك دې چې نَرْجُو يې وئيلي وو يا يې نَخَافُ وئيلي وو.

په رجاء سره د صحابه کرامو د دښمن سره د ملاقات شوق طرفته اشاره ده دشهادت يا د

---

(١) (فتح البارى ٧٨٢/١٢، ارشاد السارى: ٢٦١/١٢، شرح الكرمانى: ٦٥/٢٠)

(٢) لسان العرب باب النون: ٨٩/١٤، النهاية لابن أثير، حرف النون: ٧٢٥/٢)

(٣) (فتح البارى: ٧٨٢/١٢، إرشاد السارى: ٢٦١/١٢)

(٤) (تاج العروس، فصل العين من باب الواو والياء: ٢٦٠/١٠، لسان العرب باب العين: ٥١١/٩)

(٥) (تاج العروس، فصل الهاء من باب الواو والياء: ٤١٥/١٠، لسان العرب باب الهاء: ١٦٦/١٥)

(٦) (فتح البارى: ٧٨٢/١٢)

(٧) (فتح البارى: ٧٨٢/١٢، إرشاد السارى: ٢٦١/١٢)

(٨) (لسان العرب باب: ٤١/١، النهاية لابن أثير، حرف الهمزة: ٢٩/١)

(٩) (فتح البارى: ٧٨٣/١٢ عمدة القارى: ١٦٨/٢١)

غنيمت دامید د وجې نه، یعنی دښمن سره د مقابلې کولو نه پس یا شهادت دې یا د فتح په صورت کښې د غنيمت مال دې.
او په ویرې سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چې صحابه کرامو دا خبره نه خوښوله چې دوئ باندې دښمن نا څاپي حمله اوکړي.(١)

**قوله: وَلَيْسَتْ مَعَنَا مُدًى:**

**قوله: مُدًى:** مدى (د میم په ضمې او د دال فتحې سره) د مدية (دمیم په ضمې او د دال په سکون سره) جمع ده، چاړې ته وائي.(٢)
دهغوئ مطلب داوو چې صبا له به زمونږ دښمن سره مقابله وي، د غنیمت په مال کښې مونږ ته څناور ملاویدې شي، او دهغې د ذبح کولو ضرورت به راپیښیږي.(٣)
او په دې کښې دا هم احتمال دې چې مونږ ته د خپلو څناورو د ذبح کولو ضرورت راپیښیدې شي چا ؤپاره چې د هغې په خوړلو سره مونږ په دښمن قوت حاصل کړو. او ددې تائيد ددې خبرې نه هم کیږي لکه چې وړاندې تیر شو چې هغوئ سره د غنیمت دمال څاروی هم وو. لهذا د ذبح کولو دپاره هغوئ سره خپل څاروی هم وو او هغوئ په توره څاروی ذبح کول نه خوښول چې هسې نه د تورو مخونه پس شي. او په جنګ کښې تورې تیرې ساتل ضروري وي. ځکه صحابهٔ کرامو تپوس اوکړو چې د تورې او چاړې نه علاوه بل څیز باندې ذبح کیدېشي.(٤)

**قوله: مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ فَكُلْ:** کوم څیز چې وینه اوبهیوي، او په هغې باندې دالله تعالى نوم اخستې شوې وي، نو هغه خوړلې شي.
**دچاړې نه علاوه په نورو څیزونو سره د ذبح کولو حکم:** په دې خبره خو اتفاق دې چې که نوکونو او غاښونو نه علاوه بل هر یوتیره او نوکدارڅیز سره وینه توې شي که اوسپنه وي یا کانړی یا لرګې، هغې سره ذبح جائز ده.(٥)
البته نوك یا غاښ سره د ذبحې باره کښې به تفصيل مخکښې انشاء الله په بَابُ لَا يُذَكَّى بِالسِّنِّ وَالعَظْمِ وَالظُّفُرِ کښې راشي.

**قوله: لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ:** السِّنَّ وَالظُّفُرَ دا دواړه لفظونه یاخو منصوب دی، دمنصوب کیدو په

(١)فتح الباري:٧٨٣/١٢ عمدة القاري:١٦٨/٢١)
(٢) لسان العرب باب الميم: ٥٧/١٣، النهاية لابن أثير، حرف الميم: ٦٤٥/٢)
(٣)فتح الباري:٧٨٣/١٢ عمدة القاري:١٦٨/٢١، إرشاد الساري:٢٦١/١٢)
(٤)فتح الباري:٧٨٣/١٢ عمدة القاري:١٦٨/٢١، إرشاد الساري:٢٦١/١٢، شرح الكرماني:٩٥/٢٠)
(٥)المغني لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح:٣١٧/٩، المجموع شرح المهذب، كتاب الصيد والذبائح: ٨٣/٩، شرح مختصر الطحاوي، كتاب الصيد والذبائح: ٢٢٣/٧، إكمال المعلم بفوائد مسلم كتاب الإضاحي باب جواز الذبائح بكل ما أنهر الدم: ٤٢١/٦)

صورت کښې به لَيْسَ استثناء وی، او د مستثنی کیدو په وجه به دا دواړه منصوب وی، او یا مرفوع دی، دمرفوع کیدو په صورت کښې به دا د لَيْسَ اسم وی، او خبر به محذوف وی.
ای لیس السن والظفر مهاحا.[1]

خو د منصوب کیدو احتمال څکه راجح دې چې د سنن بیهقی روایت کښې د لَيْسَ په ځائې إلا السِّنَّ وَالظُّفُرَ دی.[2]

علامه نووی رحمة الله علیه هم السِّنَّ او الظُّفُرَ لره د استثناء په وجه منصوب ګرزولی دی.

**قوله:** أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ یعنی غاښ خو هډوکې دې، او هډوکی سره د ذبح کولو په ممانعت کښې دوه وجوهات ذکر کړې شوی دی.

**اوله وجه:** یوه وجه داده چې هډوکی سره ذبح کولو کښې به هډوکی په وینې سره نجس شي، اونبی کریم ﷺ هډوکی دنجس کولونه منع فرمائیلې ده څکه چې هډوکی د جناتو غذا ده.[3]

چنانچه سنن ابی داؤد کښې روایت دې:

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا مُحَمَّدُ: انْهَ أُمَّتَكَ أَنْ يَسْتَنْجُوا بِعَظْمٍ أَوْ رَوْثَةٍ أَوْ حُمَمَةٍ، فَإِنَّ اللهَ تَعَالَى جَعَلَ لَنَا فِيهَا رِزْقًا، قَالَ: «فَنَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ»[4]

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی: چې دجناتو یو وفد دنبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو. عرض یې اوکړو اې دالله رسوله ﷺ! تاسو خپل امت په هډوکی، خاشنړو او کوئلې سره داستنجاء کولو نه منع کړئی څکه چې الله تعالی دا څیزونه زمونږ دپاره رزق ګرزولی دی، نو نبی کریم ﷺ (په دې څیزونو سره د استنجاء کولونه) منع اوفرمائیله.

**دویمه وجه:** او دویمه وجه داده چې په دې صورت کښې تعذیب د حیوان دې. هډوکی سره ځاروې زر نه ذبح کیږی، هغه ته به عذاب وی، څکه ئې منع اوفرمائیله.[5]

**قوله:** وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ: او نوکونه د حبشو چاړې دی یعنی حبشیانوبه په خپلو نوکونو ځاروې ذبح کولو. چونکه هغوئ کافران وو، او تشبه بالکفار جائز نه ده. څکه ئې منع اوفرمائیله. بله دا چې په دې کښې هم تعذیب د حیوان دې.[6]

---

[1] (فتح الباري: ۷۸۱/۱۲، عمدة القاري: ۱۶۸/۲۱)
[2] (السنن الكبرى للبيهقي، كتاب الضحايا و باب الذكاة بما انهر الدم: ۱۹۱٤۹، ۲۷۲/۹)
[3] (شرح النووي على جامع الصحيح لمسلم كتاب الأضاحي، باب جواز الذبح بكل ما أنهر الدم ۱۵۷/۲)
[4] كتاب الطَّهَارَةِ بَابُ مَا يُنْهَى عَنْهُ أَنْ يُسْتَنْجَى بِهِ رقم الحديث: ۳۹)
[5] فتح الباري: ۷۸٤/۱۲)
[6] فتح الباري: ۷۸٤/۱۲)

دمسلم شريف په روايت کښې دی:

«نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ الضَّرْبِ فِي الْوَجْهِ، وَعَنِ الْوَسْمِ فِي الْوَجْهِ» (۱)

نبی کریم ﷺ په مخ وهلو او په مخ باندې دداغ لګولو نه منع فرمائیلې ده.

داشان بل یو وایت کښې دی چې نبی کریم ﷺ دیو خره خوا تیر شو، څه ګوری چې د هغه په مخ باندې چا داغ لګولې دې او یو نشان يئ پرې جوړکړې دې، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل «لَعَنَ اللهُ الَّذِي وَسَمَهُ» (۲) الله تعالی دې په هغه چا لعنت اوکړی چا چې په ده باندې داغ لګولې دې.

**د مخ نه علاوه د څناور د بدن په نورو حصو باندې د داغ لګولو حکم:** د مخ نه علاوه دبدن په نورو حصو باندې څناور داغل چې نورو څناورو کښې يئ پیژندګلو پیدا شی، دا داغل جائز دی. (۳)

اګر چې شراح حدیث علامه کرمانی رحمة الله علیه، علامه نووی رحمة الله علیه، حافظ ابن حجر رحمة الله علیه، علامه قسطلانی رحمة الله علیه، وغیره حضرات احنافو طرف ته د کراهتن قول منسوب کړې دې یعنی دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد د څناورد مخ نه علاوه د بدن په نوره حصه باندې داغ لګول هم مکروه دی. (۴)

لیکن صحیح خبره داده چې د احنافو په نزد هم دڅناور د مخ نه علاوه د بدن په نورو حصو باندې علامت دپاره داغل جائز دی. (۵)

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: «نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُضْرَبَ»: دا دماقبل سند سره متصل دې. (۶)

حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چې نبی کریم ﷺ په مخ باندې د داغ وهلو نه منع فرمائیلې ده.

دې روایت کښې أَنْ تُضْرَبَ دی. د مفعول په ذکر نشته دې، په دې وجه امام بخاری رحمة الله علیه وړاندې دقتیبه روایت نقل کړې دې چې په هغې کښې د الوجه تصریح ده.

**په ترجمة الباب باندې استدلال:** امام بخاری رحمة الله علیه ددې روایت نه په دې ترجمة

---

(۱) الجامع الصحیح لسلم کتاب اللباس/بَابُ النَّهْيِ عَنْ ضَرْبِ الْحَيَوَانِ فِي وَجْهِهِ رقم الحدیث:۵۵۵۰ عمدة القاری:۲۰۶/۲۱)

(۲) الجامع الصحیح لسلم کتاب اللباس/بَابُ النَّهْيِ عَنْ ضَرْبِ الْحَيَوَانِ فِي وَجْهِهِ رقم الحدیث: ۵۵۵۲ فتح الباری:۸۳۷/۱۲ عمدة القاری:۲۰۶/۲۱)

(۳) شرح الکرمانی: ۱۱۵/۲۰، عمدة الباری:۲۰۷/۲۱، إرشاد الساری: ۲۹۴/۱۲)

(۴) شرح الکرمانی: ۱۱۶/۲۰، فتح الباری:۸۳۸/۱۲ شروح النووی الجامع الصحیح لسلم کتاب اللباس/بَابُ النَّهْيِ عَنْ ضَرْبِ الْحَيَوَانِ فِي وَجْهِهِ ۲|۲۰۳، إرشاد الساری: ۲۹۴/۱۲)

(۵) ردّ المحتار کتاب الحظروالإباحة فصل فی البیع: ۲۷۵/۵، البحر الرائق کتاب الکراهیة. فصل فی البیع: ۲۷۵/۵، الکنز الکنزی المتواری : ۲۰۰/۱۹)

(۶) فتح الباری:۸۳۶/۱۲ عمدة القاری:۲۰۷/۲۱)

الباب باندې داشان استدلال كوى چې په دې روايت كښې په مخ باندې د وهلو نه منع فرمائيلې شوې ده. نو كله چې په مخ باندې وهلو له منع اوفرمائيلې شوه نو په مخ باندې داغل به په طريق اولى ممنوع وى.(۱)

**قوله: تَابَعَهُ قُتَيْبَةُ:** دا متابعت د ابن الصلاح په نزد د موصول په حكم كښې دې.څكه چې قتيبه دامام بخارى رحمة الله عليه په شيوخو كښې دې. (۲)

او دې متابعت كښې عن حنظله نه پس ماقبل سند مراددې. يعنى عن حنظله عن سالم عن ابيه. (۳)

**قوله: عَنْ أَنَسٍ ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَخٍ لِي:**

داحديث په كتاب الزكاة باب وسم الامام ابل الصدقة بيده كښې تير شوې دې. (۴)

**قوله: بِأَخٍ لِي:** دا د حضرت انس ﷺ ناڅكه رور وو ، د هغه نوم عبدالله بن ابى طلحه وو (۵)

**قوله: يُحَنِّكُهُ:** تحنيك وائى د كهجورې وغيره چوپلو نه پس د ماشوم په تالو كښې وركول. (۶)
دحديث نه معلومه شوه چې كله ماشوم پيدا شى نو مستحب دى چې دا ماشوم دې يو نيك سرى ته ورولى او په هغه دې تحنيك اوكړې شى. دې دپاره چې ددهٔ خيټې ته چې كوم څيز رومبې څى چې هغه د يو نيك كس لعاب وى. (۷)

**قوله: وَهُوَ فِي مِرْبَدٍ لَهُ:**

**قوله: مِرْبَدٍ:** (دميم په زير، د راء په سكون او د باء په فتحې سره) داوښانو غوجل ته وئيلې كيږى. (۸)
دلته دمربد اطلاق د چيلو په غوجل باندې يا مجازا دې او يا د اوښانو په غوجل كښې چيلې اودرولې شوې وې. (۹)

**قوله: حَسِبْتُهُ قَالَ - فِي آذَانِهَا:** دا د شعبه قول دې، حَسِبْتُهُ كښې ضمير منصوب هشام بن زيد طرفته راجع دې. (۱۰)

---

(۱)( عمدة القارى:۲۱/۲۰۷)
(۲)(فتح البارى:۱۲/۸۳۷، عمدة القارى:۱۲/۲۰۷)
(۳)(فتح البارى:۱۲/۸۳۷، عمدة القارى:۱۲/۲۰۷)
(۴)(كشف البارى كتابُ الزَّكَاة /بَابُ وَسْمِ الإمَامِ إبلَ الصَّدَقَة بيَده رقم الحديث- ۱۵۰۲)
(۵)(فتح البارى:۱۲/۸۳۸، عمدة القارى:۲۱/۲۰۷)
(۶)(لسان العرب، باب الحاء: ۳|۳۶۵، النهاية لابن أثير حرفالحاء : ۱|۴۴۳)
(۷)(شرح الكرمانى: ۲۰/۱۱۵، عمدة القارى:۲۱/۲۰۸)
(۸)(لسان العرب، باب الحاء: ۱۰۶/۵، النهاية لابن أثير حرفالراء : ۱|۶۲۴، عمدة القارى:۲۱/۲۰۷)
(۹)(فتح البارى:۱۲/۸۳۸، عمدة القارى:۲۱/۲۰۸، شرح الكرمانى:۲۰/۱۱۵، إرشاد السارى: ۱۲/۲۹۴، شرح النووى الجامع الصحيح لمسلم كتاب اللباس /بَابُ النَّهْى عَنْ ضَرْبِ الْحَيَوَانِ فِى وَجْهِهِ ۲|۲۰۳)
(۱۰)(فتح البارى:۱۲/۸۳۸، عمدة القارى:۲۱/۲۰۸، إرشاد السارى: ۱۲/۲۹۴)

او دمسلم په روايت کښې صراحت دې چې دا دحضرت شعبه قول دې. چنانچه دمسلم په روايت کښې دی چې: قَالَ شُعْبَةُ: «وَأَكْثَرُ عِلْمِي أَنَّهُ قَالَ فِي آذَانِهَا» (۱)
يعنی په دې کښې د قال فاعل شعبهٔ په صراحت سره مذكور دې. شعبه فرمائی چې زما خيال دادې چې هشام بن زيد د فِي آذَانِهَا الفاظ هم وئيلی وو. يعنی نبی کريم ﷺ د چيلو غوږنه داغل.
فائده: علامه نووی رحمة الله عليه فرمائی: چې هر يو حيوان په مخ باندې وهل منع دی. ليکن انسان په مخ باندې وهل ددې نه هم زيات سخت دی. (۲)
**داحاديثو ترجمة الباب سره مناسبت:**
دا احاديث مبارك دترجمة الباب سره مناسبت واضح دې (۳)

## ۳۶=بَابُ إِذَا أَصَابَ قَوْمٌ غَنِيمَةً، فَذَبَحَ [ص:۹۸] بَعْضُهُمْ غَنَمًا أَوْ إِبِلًا، بِغَيْرِ أَمْرِ أَصْحَابِهِمْ، لَمْ تُؤْكَلْ

حديث نمبر ۵۲۲۳

لِحَدِيثِ رَافِعٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ طَاوُسٌ، وَعِكْرِمَةُ: فِي ذَبِيحَةِ السَّارِقِ: «اطْرَحُوهُ»
۵۵۴۳ - حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّنَا نَلْقَى العَدُوَّ غَدًا وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى، فَقَالَ: "مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللهِ فَكُلُوهُ، مَا لَمْ يَكُنْ سِنٌّ وَلاَ ظُفُرٌ، وَسَأُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَلِكَ: أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الحَبَشَةِ" وَتَقَدَّمَ سَرَعَانُ النَّاسِ فَأَصَابُوا مِنَ الغَنَائِمِ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي آخِرِ النَّاسِ، فَنَصَبُوا قُدُورًا فَأَمَرَ بِهَا فَأُكْفِئَتْ،

ترجمه: حضرت رافع بن خديج ﷺ نه روايت دې فرمائی چې ما رسول الله عليه السلام ته عرض اوکړو: مونږ به صبا دښمن سره مقابله کوو او مونږ چاړه قدرې هم نشته. نو حضور صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل: کوم څيز چې وينه تويوی، او په هغې دالله تعالی نوم اخستې شوې وی (نو هغې سره ذبح شوې وی) هغه خورئی، په دې شرط چې غاښ او نوك نه وی. او څه تاته ددې وجه بيان کړم، غاښ خو هډوکې دی او نوکونه حبشو چړې دی. او څه خلق تيزئی وراندې لاړل، او هغه خلقو غنيمت ترلاسه کړو، او حضور ﷺ روستنو خلقو کښې وو. اوخلقو کټوئی په نغرو کيخودې. حضور ﷺحکم اوفرمائيلو چې دا کټوئی واړوئی. نو هغه کټوئی واړولې شوې.

(۱) الجامع الصحيح لمسلم كتاب اللباس/بَابُ جَوَازِ وَسْمِ الْحَيَوَانِ غَيْرِ الْآدَمِيِّ فِي غَيْرِ الْوَجْهِ رقم الحديث: ۵۵۵۵. فتح الباري:۸۳۸/۱۲، عمدة القاري:۲۰۸/۲۱، إرشاد الساري: ۲۹۴/۱۲)
(۲) شرح النووی على الجامع الصحيح لمسلم كتاب اللباس/بَابُ النَّهْيِ عَنْ ضَرْبِ الْحَيَوَانِ فِي وَجْهِهِ ۲|۲۰۳)
(۳) عمدة القاري:۲۱/ ۲۰۶،۲۰۷)

وَقَسَمَ بَيْنَهُمْ وَعَدَلَ بَعِيرًا بِعَشْرِ شِيَاهٍ، ثُمَّ نَدَّ بَعِيرٌ مِنْ أَوَائِلِ الْقَوْمِ، وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ خَيْلٌ، فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ اللَّهُ، فَقَالَ: «إِنَّ لِهَذِهِ الْبَهَائِمِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، فَمَا فَعَلَ مِنْهَا هَذَا فَافْعَلُوا مِثْلَ هَذَا»

او حضور ﷺ دهغوئ په مینځ کښې د غنیمت مال اوویشلو. اویو اوبښ د لسو چیلو برابر اوساتلې شو. بیا بل جماعت کښې یو اوبښ وو، او هغوئ سره آسونه نه وو. یو کس اوبښ په غشی اوویشتو نو الله تعالی هغه ایسار کړو. او حضور ﷺ اوفرمائیل: په دې خناورو کښې هم څه ځنګلی خناور داشان چې تښتی. چنانچه که په دې خناورو کښې یو خناور داسې اوکړی نو هغه خناور سره داشان اوکړئ.

**تراجم رجال:**

**قوله: رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ:** دا راوی ابو عبدالله رافع بن خديج بن عدی الانصاری الحارثی رضی الله عنه دې. ددوئ حالات په، كتاب مَوَاقِيتِ الصَّلَاةِ، کښې تیر شوی دی.([1])

**قوله: طَاؤس:** داروی دطاؤس بن کیسان الیمانی الجندی الحمیری رحمة الله علیه دې، ددوئ په حالات په کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء الا من المخرجین کښې تیر شوی دی، ([2])

**قوله: عكرمة:** دا راوی مشهورامام حدیث وتفسیر ابوعبدالله عکرمه مولی عبدالله بن عباس مدنی رحمة الله علیه دې، ددوئ حالات په ([3]) کښې تیر شوی دی.

**قوله: مُسَدَّدٌ:** دا راوی مسدد بن مسرهد رحمة الله علیه دې. ددوئ تفصیلی حالات په كِتَابُ الإيمان کښې تیر شوی دی.([4])

**قوله: ابوالاحوص:** داراوی ابو الاحوص بن سلام بن سلم الحنفی الکوفی دې. ددوئ حالات په ابواب الاذان باب الالتفات فی الصلاة ([5]) کښې تیر شوی دی.

**قوله: سعيد:** داراوی سعید بن مسروق الثوری الکوفی رحمة الله علیه دې. ددوئ حالات په ([6]) کښې تیر شوی دی.

**قوله: عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ:** دا راوی عبایة بن رفاعه بن رافع بن خدیج الانصاری رحمة الله علیه دې، ددوئ حالات په، كِتَابُ الْجُمُعَةِ، کښې تیر شوی دی ([7])

---

[1] (كشف الباری كتَابُ مَوَاقِيت الصَّلَاة /بَابُ وَقْت الْمَغْرب رقم الحديث: ۵۵۹)
[2] (كشف الباری كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء الا من المخرجين رقم الحديث: ۱۷۶)
[3] (كشف الباری:۳/۳۶۳)
[4] (كشف الباری: ۲/۲)
[5] (كشف الباری ابواب الاذان باب الالتفات فی الصلاة رقم الحديث:۷۵۱)
[6] (كشف الباری ابواب الاذان /بَابُ الالْتفَات فی الصَّلَاة :رقم الحديث:- ۷۰۵)
[7] (كشف الباری كتاب الجمعة بَابُ الْمَشْى إِلَى الجمعة رقم الحديث: ۹۰۷)

**قوله:** ابيه: درفاعه بن رافع بن خديج المدنی رحمة الله عليه حالات په كتاب المغازی كښې تير شوی دی. [۱]

**قوله:** جده: دا راوی رافع بن خديج بن عدی الاوسی صحابئ رسول ﷺ دې. ددوئ احوال په مَوَاقِيتِ الصَّلَاةِ/بَابُ وَقْتِ المَغْرِبِ كښې تير شوی دی. [۲]

**تشريح:** د باب حديث مبارك په كتاب الشركة باب قسمة الغنم كښې تير شوې دې.

**د ترجمة الباب مقصد:**

امام بخاری رحمة الله عليه ترجمة الباب قائم كړو، كه يو جماعت ته د غنيمت مال په لاس ورشی او په هغوئ كښې يو كس د خپل ملګری د اجازت نه بغير چيلئ يا اوښ ذبح كړی نو هغه به نه خوری، په باب كښې راتلونكی د حضرت رافع بن خديج د روايت په وجه. [۳]

علامه عينی رحمة الله عليه فرمائی: د امام بخاری مسلك شائد دادې چې چا د ذبح كولو ولايت حاصل نه وی، د ملكيت په وجه يا د وكالت په وجه، يعنی نه د هغې مالك دې او نه مالك هغه د خپلو څناورو وكيل جوړ كړې وی، نو دداسې كس ذبيحه درست نه ده. [۴]

**قوله:** وقال طاؤس وعكرمة: طاؤس او عكرمه د غل د ذبيحې متعلق اوفرمائيل: هغه اوغورزوئی او هغه مه خورئی.

علامه كرمانی رحمة الله عليه فرمائی: شايد د عكرمه ا و طاؤس هم دا مذهب دې، چې دداسې كس ذبيحه چې هغه ته نه د ولايت حق حاصل وی، نه د ملكيت په وجه او نه نه وكالت په وجه، يعنی نه هغه د څناور مالك دې او نه مالك هغه د څناور د ذبح كولو وكيل جوړ كړې وی، نو دداسې كس ذبيحه درست نه ده. باب التسمية على الذبيحة. [۵] كښې ددې تفصيل تير شوې دې.

**دتعليق تخريج:**

دطاؤس او عكرمه تعليق عبد الرزاق موصولا نقل كړې دې. [۶]

**قوله:** حدثنا ابو الاحوص حدثنا سعيد بن مسروق: دې روايت كښې ابوالاحوص د حضرت سعيد بن مسروق نه روايت كوی، او دهغوئ په سند كښې عن عباية بن رفاعة عن ابيه عن جده دې. ليكن دا روايت ماقبل كښې ډيرو ځايونو كښې تير شوې دې. او ددې باب نه پس راتلونكی باب كښې هم دې. خو په هغه ټولو رواياتو كښې د من ابيه واسطه نشته.

---

[۱] (كشف البارى كتَابُ المَغَازِی /بَابُ تَسْمِيَة مَنْ سُمِّيَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ رقم الحديث: ٤٠١٤)

[۲] (كشف البارى كِتَابُ مَوَاقِيتِ الصَّلَاة /بَابٌ وَقْتِ المَغْرِبِ رقم الحديث:-٥٥٩)

[۳] ( شرح الكرمانی: ١١٦/٢٠، فتح البارى:٨٣٦/١٢)

[۴] ( عمدة القارى:٢٠٨/٢١)

[۵] ( شرح الكرمانی: ١١٦/٢٠، عمدة القارى: ٢٠٨/٢١، إرشاد السارى: ٢٩٥/١٢)

[۶] (المصنف لعبدالرزاق كتاب المناسک، باب ذبيحة سارق رقم الحديث:٨٥٩٨ ٣٧١/٤، تغليق التعليق:٥٢٦/٤)

حضرت غساني فرمائي ددې حديث ټول راويان د حضرت سعيد بن مسروق نه روايت کوي او ټول راويان عن عباية عن جده نه روايت کوي، سوا د ابوالاحوص نه. خينې حضرات فرمائي ابوب الاحوص نه خطا شوې ده. ځکه چې هغوئ د عباية نه پس د ابيه واسطه اضافه کړې ده (١)

فائده. په دې روايت تفصيلي کلام په باب التسمية على الذبيحة کښې شوې دې.

ترجمة الباب سره مناسب: د حديث مبارك ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. (٢)

## ٢٧ - بَابُ إِذَا نَدَّ بَعِيرٌ لِقَوْمٍ، فَرَمَاهُ بَعْضُهُمْ بِسَهْمٍ فَقَتَلَهُ، فَأَرَادَ إِصْلَاحَهُمْ، فَهُوَ جَائِزٌ

٥٥٠٣ - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ، أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّنَافِسِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَنَدَّ بَعِيرٌ مِنَ الإِبِلِ، قَالَ: فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَهُ، قَالَ: ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ لَهَا أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الوَحْشِ، فَمَا غَلَبَكُمْ مِنْهَا فَاصْنَعُوا بِهِ هَكَذَا»

ترجمه: د حضرت رافع بن خديج ﷜ نه روايت دې فرمائي: مونږ يو سفر کښې حضرت نبی کريم ﷺ سره وو. اوښانو کښې يو اوښ اوتښتيدو، راوی وائی چې يو کس اوښ په غشی اوويشتو نو هغه را ايسار شو. راوی وائی چې او حضور ﷺ اوفرمائيل: په دې څناورو کښې هم څه ځنګلی څناور داشان چې تښتي. چنانچه که په دې څناورو کښې يو څناور داسې اوکړی نو هغه څناور سره داشان اوکړئ.

قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا نَكُونُ فِي المَغَازِي وَالأَسْفَارِ، فَنُرِيدُ أَنْ نَذْبَحَ فَلَا تَكُونُ مُدًى، قَالَ: «أَرِنْ، مَا نَهَرَ - أَوْ أَنْهَرَ - الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ فَكُلْ، غَيْرَ السِّنِّ وَالظُّفُرِ، فَإِنَّ السِّنَّ عَظْمٌ، وَالظُّفُرَ مُدَى الحَبَشَةِ»

راوی وائی ما عرض اوکړو اې د الله رسوله ﷺ! مونږ د جنګ او د سفر په حالت کښې سفر کوو اومونږ څناور ذبح کول غواړو ليکن مونږ چاړه قدرې هم نه وی. نو حضور صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل: هغه په څيز سره هلاك کړئ کوم څيز چې وينه تويوی، يا يئ دا اوفرمائيل: وينه اوبهوه او په هغې د الله تعالی نوم اخستې شوې وی (نو هغې سره ذبح شوې وی) هغه خورئ، په دې شرط چې غاښ او نوك نه وی. په دې شرط چې غاښ او هډوکې نه وی. ځکه چې غاښ خو هډوکې دې او نوکونه حبشو چړې دی.

تراجم رجال:

قوله: مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ: دا راوی ابو عبدالله محمد بن سلام بن الفرج السلمی البيکندی رحمة الله عليه دې. ددوئ حالات په کتاب الايمان کښې کښې تير شوی دی (٣)

(١) شرح الکرمانی: ٢٠/١١٦، عمدة القاری: ٢١/٢٠٩)

(٢) (عمدة القاری: ٢١/٢٠٨)

(٣) (کشف الباری: ٢/٩٣)

**قوله: عمر بن عبيد:** دا راوی ابو احفص عمر بن عبید بن ابی امیهد الطنافسی الایادی الکوفی رحمة الله علیه دې. (۱)

**قوله: اساتذه:** دوئ دخپل والد عبید بن امیه نه، او ابواسحاق السبعی نه، عبدالملك بن عمر نه، مسروق، سماك بن حرب، اعمش، منصور، اشعث بن سلیم، وغیرهم حضرت نه روایت کوی. (۲)

**قوله: تلامذه:** او ددوئ نه روایت کوونکی ددوئ رور ابراهیم بن عبید، او امام احمد بن حنبل، اسحاق بن راهویه، ابوبکر عبدالله بن محمد بن ابی شیبة، عثمان بن محمد بن ابی شیبة، محمد بن سلام البیکندی، محمد بن عبدالله نمیر، ابو کریب و غیره حضرات دی. (۳)

**دحضرات محدثینو ددوئ باره کښې رائې:** حضرت یحیی بن معین رحمة الله علیه ددوئ باره کښې فرمائی: **صالح:** (۴)

ابو حاتم فرمائی: **محله الصدق.** (۵)

ابن حبان ددوئ ذکر په کتاب الثقات کښې کړې دې. (۶)

علامه ذهبی او حافظ ابن حجر رحمهما الله ددوئ **ثقه** گرځولی دی (۷)

ابن دوئ ته په الطبقات کښې **ثقه** وئیلی دی. (۸)

**تاریخ وفات:** ابن سعد وغیره حضرات ددوئ تاریخ وفات ۱۸۵ هجری لیکلې دی. (۹) ابن حبان رحمة الله علیه فرمائی چې دوئ په ۱۸ هجری کښې وفات شو.

داراوی سعید بن مسروق الثوری الکوفی رحمة الله علیه دې. ددوئ حالات په ابواب الاذان /بَابُ من شکا امامه اذا طول کښې تیر شوی دی. (۱۰)

---

(۱)(الجرح والتعدیل رقم الترجمة: ٦٦٨ ٦/١٥٥، التاریخ الکبیر للبخاری: رقم الترجمة: ٢٠٨٨، ٦/١٧٧، کتاب الثقات لابن حبان رقم الترجمة:٣١٣٨، ٤/١١٤، تهذیب التهذیب رقم الترجمة: ٨٩٦ ٧/٤٨٠، میزان الاعتدال رقم الترجمة: ٦١٦٥ ٣/٢١٣، الکاشف رقم الترجمة: ٤١٤٢، ٢/٣٠٧، تقریب التهذیب رقم الترجمة:٤٩٦١، ١/٤٢٣)

(۲)(الجرح والتعدیل :٧/٤٨٠،تهذیب التهذیب: ٧/٤٨٠، تقریب التهذیب رقم الترجمة: ٢١/٤٥٥)

(۳)(الجرح والتعدیل :٧/٤٨٠،تهذیب التهذیب: ٧/٤٨٠، تقریب التهذیب رقم الترجمة: ٢١/٤٥٥)

(۴)(الجرح والتعدیل :٧/٤٨٠،تهذیب التهذیب: ٧/٤٨٠، تقریب التهذیب رقم الترجمة: ٢١/٤٥٥)

(۵)(الجرح والتعدیل :٧/٤٨٠،تهذیب التهذیب: ٧/٤٨٠، تقریب التهذیب رقم الترجمة: ٢١/٤٥٥)

(۶)(کتاب الثقات لابن حبان: ٤/١١٤)

(۷)( میزان الاعتدال : ٣/٢١٣، تقریب التهذیب :١/٧٢٣)

(۸)(الطبقات الکبری لابن سعد الطبقه السابعه:٦/٣٨٧)

(۹)(الطبقات الکبری لابن سعد الطبقه السابعه:٦/٣٨٧، تهذیب التهذیب: ٨٩٦، الکاشف رقم الترجمة: ٤١٤٢، ٢/٣٠٧، تهذیب الکمال،رقم الترجمة:٢١/٤٥٦)

(۱۰)(کشف الباری ابواب الاذان /بَابُ ن شکا امامه اذا طول:رقم الحدیث:- ٧٠٥)

**قوله: عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ:** دا راوی عبایة بن رفاعه بن رافع بن خدیج الانصاری رحمة الله علیه دي، ددوئ حالات په، کِتَابُ الجُمُعَةِ بَابُ المشي إلى الجمعة، کښې تیر شوی دی.(1)

**قوله: جده:** دا راوی رافع بن خدیج بن عدی الاوسی صحابئ رسول ﷺ دي. ددوئ احوال په مَوَاقِيتِ الصَّلَاةِ/بَابُ وَقْتِ المَغْرِبِ کښې تیر شوی دی.(2)

**تشریح:** داحدیث مبارك په کتاب الشرکة باب قسمة الغنم کښې تیر شوي دي.(3)

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمة الله علیه ددې ترجمة الباب نه مقصد دادې چې که دیو قوم اوښ اوتښتي او په هغوئ یو کس هغه په غشي اولي،او ددې نه دهغه مقصد ښیګړه وی، نو دا ددې حدیث په بناء جائز دی کوم چې حضرت نبی کریم ي نه نقل کیږي.او ویشتونکي به ضامن نه وی. لیکن که د اجازت نه بغیر یئ اولوی نو بیا به ضامن وی.(4)

**ماقبل ترجمة الباب او دې ترجمة الباب کښې تطبیق:**

دې نه ماقبل امام بخاری رحمة الله علیه باب قائم کړې وو. که دمالك د اجازت نه بغیر چا څناور ذبح کړو نو هغه به نه خوړلې کیږي.

لیکن ددې ترجمة الباب قائمولو سره دې طرف ته اشاره ده چې که د مالك د اجازت نه بغیر څناور ذبح کړو، داصلاح په غرض سره نو دا جائز دی.

دواړو کښې د تطبیق صورت هم دادې، که ذابح په طور د تعدی، زیاتی مالك ته د نقصان رسولو دپاره څناور ذبح کړو نو داسې څاروې به نه خوړلې کیږي. څنګه چې ماقبل حدیث کښې خلقو د تقسیم نه وړاندې څناور ذبح کړل.

اوکه د اصلاح په غرض سره یعنی څناور د خپل مالك نه اوتښتي او مالك ته ویره وی چې هغه څاروې به ورك شي، اودې کس هغه اوویشتو نو داسې څاروې به خوړلې کیږي لیکن چونکه دلته مالك د فائد رسولو دپاره بغیرد اجازت نه ذبح اوشوه نو د امام بخاری په نزد په داسې صورت کښې د مالك د اجازت نه بغیر ذبح جائز ده. او مذبوحه څاروې به خوړلې کیږي. بغیر دمالك د اجازت نه د مذبوحې حکم او حدیث باب باندې تفصیلی کلام په باب التسمیة علی الذبیحه کښې تیر شوې دې.

**دترجمة الباب سره مناسب:** دحدیث مبارك دترجمة الباب سره مناسبت د فندبعیرمن الابل په وجه دې.

(1)(کشف الباری کتاب الجمعة بَابُ المشي إلى الجمعة رقم الحدیث: ۹۰۷)
(2)(کشف الباری کتَابُ مَوَاقِیت الصَّلَاة/بَابُ وَقْت المَغْرب رقم الحدیث:-۵۵۹)
(3)(کشف الباری کتاب الشرکة باب قسمة الغنم رقم الحدیث:۲٤۸۸)
(4)(التوضیح:۲۶/۵۵۶، عمدة القاری:۲۱/۲۰۹)

## ٣٨=بَابُ إِذَا أَكَلَ الْمُضْطَرُّ

لِقَوْلِ اللهِ تَعَالَى: {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ، وَاشْكُرُوا لِلّٰهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ، إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ، فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ، فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ} [البقرة: ١٧٣]

ترجمه: امام بخاري رحمة الله عليه باب كښې صرف قراني ايتونه ذكر كوي.
رومبې آيت د سورة بقره دې. ائې ايماندارو! زمونږ دركړې پاكيزه (حلاله) روزي خورئې اودالله شكر اوباسئ كه تاسو په رښتيا صرف د الله تعالى عبادت كوئ بيشكه الله په تاسوباندې مرداره (چه بغيرد ذبحې نه مړه شوې وى) او (بهيدلې) وينه دخنزيرغوښه اوداسې مذبوحه چې دالله نه بغير د بل چانوم پرې (د ذبحې په وخت) وئيلې شوې وى حرام كړى دى خوځوك چې دې حرامو څيزونوته محتاج شو اوپه خوړلو كښې د خوند طلبګار نه وى اودحد نه زيات خوراك كونكې نه وى.

وَقَالَ: {فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِإِثْمٍ} [المائدة: ٣]

دويم ايت دسورة مائده دې. بيا چې څوك مجبوره شى په اولږه كښې، ليكن ګناه ته مائل نه وى.

وَقَوْلِهِ: (فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ. وَمَا لَكُمْ أَنْ لَا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ وَإِنَّ كَثِيرًا لَيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ)

دريم ايت د سورة انعام دې: نودهغې څاروونه خوراك كوئې چه دالله نوم پرې اخستې شوې وى كه تاسو دهغه ذات په حكمونوباندې ايمان لرئ او آخرپه تاسو څه شوى دى چه تاسو دې دهغه څاروى نه خوراك نه كوئ چې دالله ﷻ نوم پرې ياد شوې وى حال دا دې چې الله ﷻ څۀ حرام كړى دى هغه يې تاسوته په تفصيل سره بيان كړى دى | مګر هغه چه تاسو (دلوږې حالت كښې) هغې ته محتاج شئ (نوبياهم هغه حلال دى) اوډيروخلقوداحال دې چې بې دليله دخواهشاتو په وجه خلق ګمراه كوى اوالله ﷻ هغه خلق ډير ښه پيژنى كوم چه دالله ﷻ دحدونونه وړاندې تيريږي.

وَقَوْلِهِ جَلَّ وَعَلَا: {قُلْ لَا أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَى طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَسْفُوحًا} قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: «مُهَرَاقًا» {أَوْ لَحْمَ خِنْزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهِ، فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ [ص: ٩١] غَفُورٌ رَحِيمٌ} [الأنعام: ١٤٥]

څلورم آيت هم د سورة انعام دې: (ائې پيغمبره) ورته اووايه چې ماته كومه وحى شوې ده په هغې كښې خوزه په يوخوړونكى باندې دخوراك دپاره هيڅ څيزحرام نه مومم مګر دا چې مردار وى يابهيدلې وينه يا د خنزيرغوښه وى ځكه چه دا پليته ده او يا ناجائزه ذبيحه وى چې دالله ﷻ نه سوا دبل چانوم پرې اخستې شوې وى څوك چې محتاج شى نونافرمانى دې نه كوى اودحدنه دې زياتې نه كوى | بيشكه ستا رب بښونكې اومهربان دې.

وَقَالَ: ﴿فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا، وَاشْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ، إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ، فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾

پنځم ایت د سورة نحل دې: پس خورئې دهغه رزق نه کوم چې تاسو ته الله تعالی درکړې دې پاك او حلال او شکر اداکړئې دالله تعالی داحسان، که تاسو د هغه عبادت کوئې، الله تعالی داحرام کړی دی په تاسو مرداره، او وینه او دخنزیر غوښه او په کومې چې دالله تعالی نوم نه وی اخستې شوې، او بیا چې څوك بې اختیاره شی په اولړه کښې، نه دې نافرمانی کوی نه دې زیاتې کوی، نو الله تعالی بخښونکی او مهربان دی.

**تشریح:** دې باب کښې امام بخاری رحمة الله علیه هیڅ یو حدیث نه دې ذکر کړې، شاید د خپل شرط مطابق امام بخاری رحمة الله علیه ته چرته حدیث نه دې ملاؤ شوې. ځکه یې د قرآن کریم آیتونه ذکر کړل. (1)

**مضطر څوک دې؟** مضطر د اسم مفعول صیغه ده، اصل کښې دا مضترر وو، بیا فاء افتعال ضاء وو، نو تاء افتعال طاء سره بدل کړې شو، ځکه چې قاعده ده چې کله د باب افتعل فاء کلمه صاد، ضاد، طاء یا ظاء وی نو تاء افتعال لره په طاء سره بدلیږی. (2)

لهذا تاء په طاء سره بدله شوه، او د راء په راء کښې ادغام اوشو، نو مضطر شو. په معنی د مجبور کړې شوې. (3)

مضطر نه مراد هغه کس دې د اولږې په وجه هغه ته خطره وی، که چرې څه او نه خوری د هغه د هلاکیدو خطره وی.

دغه شان هغه کس هم د مضطر په حکم داخل دې چې په مرداره خوړلو مجبور کړې شوې وی، او د خوراك نه کولو په صورت کښې دهغه د هلاکت خطره وی، یا ځینې اندامونو ته د هلاکت خطره وی.

دا دواړه صورتونه په اضطرار کښې داخل دی. او دا د الاما اضطررتم نه مراد دی. (4)

**د مضطرو اقسام:**

علامه شامی رحمة الله علیه فرمائی: که یو کس د معاصی په ارتکاب کولو مجبور کړې شوې وی نو دهغې څو صورتونه دی:

① یو صورت دادې چې که مضطر دپاره د ګناه د ارتکاب رخصت وی یعنی په دغه حالت د اضطرار کښې شریعت اجازت کړې وی نو د خپل ځان بچ کولو دپاره ددغه ګناه ارتکاب

---

(1) (عمدة القاری: ۲۱۰/۲۱)

(2) (علم الصیغه قواعد مختص بالافتعال ص: ۴۶)

(3) (لسان العرب باب الضاد: ۴۶/۸، تاج العروس، فصل الضاد باب الراء: ۳۴۹/۳)

(4) (احکام القرآن للجصاص سورة البقرة: ۱۷۳، باب ذکر الضرورة المبیحة لاکل المیتة: ۱۵۷/۱، کتاب الام، کتاب الاطعمة، باب مایحل بالضرورة: ۵۷۳/۵ الفتاوی العالمکیرة کتاب الکراهیة الباب العادی عشر فی الکراهیة فی الاکل: ۳۳۷/۵)

اوکړي. او که ددې ګناه ارتکاب یې اونه کړي او دې مړې کړې شو نو ده به ثواب ملاویږي لکه یو کس دکفر کلمه په وئیل مجبور کړې شو، یا په مونځ پرېښودې مجبور کړې شو. نو هغه دپاره د شریعت له طرفه په حالت اضطرار کښې رخصت دې. خوکه په رخصت باندې عمل اونه اوکړو نو ثواب به ورته ملاویږي.

② دویم صورت دادې چې مضطرور دپاره په حالت د اضطرار کښې د ګناه اجازت نه وی، که هغه ګناه اوکړي نو ګناهګار به وی. لکه یو کس مجبور کړې شو چې دغه بل مسلمان قتل کړه نو داسې صورت کښې مضطر د پاره اجازت نشته چې هغه دخپل ځان بچ کولو دپاره بل قتل کړي.

③ دریم صورت دادې چې مضطر دپاره د هغه فعل کول مباح کیږي، او دهغه فعل په پرېښودلو ګناهګاریږي. لکه چا په مرداره خوړلو مجبور کړو نو داسې صورت کښې مضطر دپاره د مردارې خوړل ضروری دی، که مرداره یې اونه خوړه او دې قتل کړې شو نو ګناهګار به وی.(۱)

البته که اعداء الله، کافرانو ته د غیظ غضب خودلو دپاره او د خپل دین د سربلندئی دپاره ئې مرداره او نه خوړه او هغه قتل کړې شو نو داسې صورت کښې به هغه ګناهګار نه وی.(۲)

**مضطر د پاره مرداره خوړل ضروري که نه؟**

**داحنافو مذهب:** د احنافو په نزد مضطر دپاره مرداره خوړل ضروری دی. که مضطر مرداره اونه خوړه او هغه مړ شو نو ګناهګار به وی.(۳) البته که د کافرانو دغیظ وغضب دپاره مرداره اونه خوری نو ګناهنګار به نه وی.(۴)

**دشوافع او حنابله مذهب:**

**دشوافع او حنابله دوه روایتونه:**

یوروایت دادې چې مضطرد پاره مرداره خوړل واجب دی. او دلیل دادې دقرآن کریم آیت مبارك دې.«ولاتلقوابایدیکم الی التهلکة» او خپل ځان په هلاکت کښې مه اچوئی. او مضطر دپاره چې کله د مردارې د خوړلو اجازت دې او هغه یې نه خوری نو دا داسې دی لکه چې هغه خپل ځان په هلاکت کښې اچوی.

او د شوافع او حنابلة د بل روایت مطابق مضطر دپاره مرداره خوړل واجب نه دی.

**دلیل:** ددې روایت مطابق دا حضرات د حضرت عبدالله بن حذافه ﷺ قصې نه استدلال کوی، هغه رومیانو ګرفتار کړواو په یو کمره کښې یې بندیوان کړو او ورسره ئې د خنزیر وریته کړې غوښه او شراب هم کیخوده. لیکن حضرت عبدالله بن حذافه ﷺ دهغې نه خوراك څکاك اونه کړو. چنانچه ددې ویرې رابهر کړو چې هسې نه مړ نه شی.

(۱) (ردالمحتار کتاب الاکراه: ۹۲/۵، البحرالرائق کتاب الاکراه :۱۳۲/۸)
(۲) (ردالمحتار کتاب الاکراه: ۹۲/۵)
(۳)(المغنی لابن قدامة زکتاب الصید والذبائح: ۳۳۱/۹، المجموع شرح المهذب، کتاب الأطعمة:۳۹/۹)
(۴)الدر المحتار کتاب الاکراه:۹۲/۵)

چنانچه حضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه به فرمائیل:

اما ان الله عزوجل قد کان احله له، ولکن اکن لا شمتك بالاسلام. [۱]

دویم دلیل دادې چې مضطر دپاره د مردارې خوړل مباح کیدل رخصت دې لهذا څنګه چې په نورو رختصونو عمل کول واجب نه دی دغه شان دلته هم. [۲]

**مضطر د پاره څومره مقدار کښې د مردارې د خوړلو اجازت دې؟**

**د احنافو مذهب:**

د حضرات احنافو په نزد او د شوافع د یو روایت او د حنابله د اصح روایت مطابق مضطر دپاره حرام په قدر دضرورت د استعمال اجازت دې. صرف دومره مرداره خوړلې شی چې هغې سره دده په بدن کښې د ژوند رنړا برقرار پاتې شی. ځکه چې قرآن کریم کښې د غیرباغ ولاعاد قید لګولې شوې دې، چې هغه دخوراك د لذت په تلاش کښې نه وی، او نه د حد نه تجاوز کوؤنکې وی. [۳]

دغه شان د سورة مائده آیت مبارك (غیر متجانف لاثم) او د (غیر متجانف لاثم) تفسیر کړې شوې دې چې د ضروردت نه به زیات نه خوری. [۴]

لهذا کله چې دومره مقدار خوراك اوکړو نو او س ددې نه زیات خوړل جائز نه دی. [۵]

اودا هم چې آیت مبارك صرف مضطر دپاره استثناء شوې ده، لهذا کله چې لږ شان خوراك اوکړی نو ضرورت به ختم شی، نو هغه دپاره به نور خوراك حلال نه وی. څنګه چې په ابتداء کښې یو کس مضطر نه وی او هغه دپاره حرام وو، او لږ شان خوراك نه پس به مضطر شی [۶]

په حضرات مالکیه کښې د ابن الماجشون او ابن حبیب هم دا مذهب دې. [۷]

**د مالکیه مذهب:** دحضرات مالکیه په نزد او د شوافع دیو روایت هم ددې پشان دې، دغه شان د حنابله د دویم روایت مطابق مضطردپاره په مړه خیټه خوراك کول جائز دی. [۸]

---

[۱](تاریخ مدینه دمشق لابن عساکر، عبدالله بن حذافه رضی الله عنه رقم الترجمة: ۳۲۳۷، ۲۷/ ۳۶۰، دارالفکر المغنی لابن قدامة کتاب الصید والذبائح: ۹/ ۳۳۱)

[۲](المجموع شرح المهذب، کتاب الأطعمة: ۹/ ۴۰، المغنی لابن قدامة زکتاب الصید والذبائح: ۹/ ۳۳۱)

[۳](تفسیرروح المعانی سورة البقرة: ۱۷۳، ذکرالضرورة المبیحة لاکل المیتة: ۱/ ۱۵۴)

[۴](تفسیرروح المعانی سورة المائدة: ۳، ۲۳٤)

[۵](تفسیرروح المعانی: ۱/ ٤٤٠، احکام القرآن للجصاص الاطعمة: ۹/ ۳۹)

[۶](المغنی لابن قدامة زکتاب الصید والذبائح: ۹/ ۳۳۰)

[۷](شرح الزرقانی کتاب الصیدباب ماجاء فیمن یضطر الی اکل المیتة: ۳/ ۹۵، المنتقی شرح مؤطاإمام مالک، ماجاء فیمن یضطر الی اکل المیتة: ٤/ ۲۷۶، بدایة المجتهد، کتاب الاطعمة مقدار مایوکل من المیتة عند الضرورة: ٤/ ۱۹۲، حاشیة الدسوقی باب المباح: ۲/ ۳۸۰، احکام القرآن لابن العربی بقرة: ۱۷۳، ۱/ ۸۲، کتاب الام، کتاب الاطعمة، باب مایحل بالضرورة: ۵/ ۵۷٤، تفسیر الامام الشافعی بقرة: ۱۷۳، ۱/ ۲٤۸، المجموع شرح المهذب، کتاب الأضحیة: ۹/ ٤۰، المغنی لابن قدامة زکتاب الصید والذبائح: ۹/ ۳۳۰)

[۸](شرح الزرقانی کتاب الصیدباب ماجاء فیمن یضطر الی اکل المیتة: ۳/ ۹۵، المنتقی شرح مؤطاإمام مالک......

دليل: داحضرات د حضرت جابر ﷺ د روايت نه استدلال كوي:

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، أَنَّ رَجُلًا، نَزَلَ الْحَرَّةَ وَمَعَهُ أَهْلُهُ وَوَلَدُهُ فَقَالَ رَجُلٌ إِنَّ نَاقَةً لِي ضَلَّتْ فَإِنْ وَجَدْتَهَا فَأَمْسِكْهَا فَوَجَدَهَا، فَلَمْ يَجِدْ صَاحِبَهَا فَمَرِضَتْ فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: انْحَرْهَا فَأَبَى فَنَفَقَتْ فَقَالَتْ: اسْلُخْهَا حَتَّى نُقَدِّدَ شَحْمَهَا، وَلَحْمَهَا، وَنَأْكُلَهُ، فَقَالَ: حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَأَتَاهُ فَسَأَلَهُ فَقَالَ «هَلْ عِنْدَكَ غِنًى يُغْنِيكَ»، قَالَ: لَا قَالَ: «فَكُلُوهَا»[1]

يوې سړي (مديني منورر سره نزدې) د حره په مقام استوګن شو. هغه سره اهل وعيال هم وو. هغه ته يوبل كس اووئيل چې زما اوښه وركه شوې دې كه تاته ملاؤ شوه نو هغه اونيسه. دې كس هغه اوښه ملاؤ شوه خو د اوښې مالك ورته ملاؤ نشو. بيا دا اوښه بيماره شوه. نو دې سړي ته ښځې اووئيل چې دا ذبحه كړه. خو دې كس د خپلې ښځې خبره باندې عمل او نه كړو او هغه اوښه مړه شوه. بيا دې سړي ته ښځې اووئيل چې ددې اوښې نه څرمن اوباسه، چې مونږ ددې چربي او غوښه اوچه كړو او هغه اوخورو. دې سړي اووئيل چې ددې باره كښې درسول كريم ﷺ نه پوښتنه كوم. نو هغه سړې د سرور كائنات ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او د حضور ﷺ نه يې ددې مسئلې باره كښې تپوس اوكړو. حضور ﷺ اوفرمائيل: تاسره دومره څه شته چې تا د مردارې خوړلو نه اوساتي. دې كس اووئيل چې نه، ماسره هيڅ نشته. نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل: ته هغه اوښه اوخوره.

او په دې وجه لږ مقدار خوړل جائز دی نو زيات مقدار خوړل به هم جائز وي. ([2])

او دضرورت په وجه ددې مردارې حرمت ختم شو. او هغه مباح شوه. لهذا تر كومې چې حلال خوراك نه وي نو تر هغه وخته پورې به ضرورت برقرار وي. او هغه دپاره به مرداره خوړل جائز وي. ([3])

ابن قدامه رحمة الله عليه فرمائي: كه ضرورت مستمره دې، يعنى چې ددې ضرورت د زر ختميدو اميد نه وي، نو داسې صورت كښې به په مړه خيټه خوراك جائز وي. لكه څنګه چې د اعرابى قصه ده. له دې و چې داسې صورت كښې كه لږ مقدار كښې خوراك اوكړې شى نو دوباره به هم هغه ضرورت بيا راپيدا شى. او دوباره به مرداره خورى.

........ ماجاء فيمن يضطر الى اكل الميتة: ۲۷۶/٤، بداية المجتهد، كتاب الاطعمة مقدار مايوكل من الميتة عند الضرورة: ۱۹۲/٤، حاشية الدسوقى باب المباح: ۳۸۰/۲، احكام القرآن لابن العربى بقرة: ۱۷۳، ۸۲/۱ كتاب الام، كتاب الاطعمة، باب مايحل بالضرورة: ۵۷٤/۵، تفسير الامام الشافعى بقرة: ۱۷۳، ۲٤۸/۱، المجموع شرح المهذب، كتاب الأضحية: ٤۰/۹، المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح: ۳۳۰/۹)

[1] (سنن ابى داؤد: كتاب الاطعمة بَابٌ فِي الْمُضْطَرِّ إِلَى الْمَيْتَةِ رقم الحديث: ۳۸۱۶، المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح: ۳۳۰/۹)

[2] (المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح: ۳۳۰/۹)

[3] (الزرقانى كتاب الصيدباب ماجاء فيمن يضطر الى اكل الميتة: ۹۵/۳، المنتقى شرح مؤطا إمام مالك، ماجاء فيمن يضطر الى اكل الميتة: ۲۷۶/٤، احكام القرآن لابن العربى بقرة: ۱۷۳، ۸۳/۱)

ليكن كه د ضرورت د ختميدو اميد وى نوداسې صورت كښې دضورتر په قدر دې خوراك اوكړى، څكه روستو به ورته حلال ملاؤ شي.[1]

**په سفر معصيت كښې د اضطرار حكم:**

كه يو كس د گناه په نيت سره په سفر كښې وى. او د مردارې خوړلو دپاره د اضطرار صورت پيدا شي، نو دحنابله، حنابله او شوافع په نزد گناهگار دپاره په حالت د اضطرار كښې مرداره خوړل جائز نه دى.[2]

**دليل:** دا حضرات د قرآن كريم د آيت مبارك (فمن اضطر غير باغ ولا عاد) نه استدلال كوى. او د (غير باغ) مطلب ددې حضرات په نزد چې د امام خلاف بغاوت كولو والا نه وى، او د (عاد) مطلب قاطع الطريق نه وى.[3]

**داحنافو مذهب:**

داحنافو په نزد كه څوك د گناه په نيت سره سفركوى يا كه د گناه نيت يې نه وى نو ټولو دپاره په حالت د اضطرار كښې اكل ميته جائز دە.[4]

**دليل:** داحنافو دليل دقرآن كريم آيت مبارك دې (وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ)[5] او هغه ذات واضح كړى دى كوم چې څه يې په تاسو حرام كړى دى، مگر دا چې دهغې په خوراك مجبوره شئ.

دا آيت مبارك عام دې. گناهگار او مطيع ټول په دې شامل دى.[6]

دغه شان د ائمه ثلاثه په نزد مضطر ځان سره ميته وغيره ايښودې شي، او ددې نه خوراك كولې شي، تر كومې چې حلال ملاؤ نشي.[7]

---

[1] (المغنى لابن قدامة كتاب الصيد والذبائح:۳۳۰/۹)

[2] (شرح الزرقانى كتاب الصيدباب ماجاء فيمن يضطر الى اكل الميتة:۹۵/۳، المنتقى : ۲۸۱/٤، احكام القرآن لابن العربى بقرة:۱۷۳، ۸۵/۱ بداية المجتهد، كتاب الاطعمة مقدار مايوكل من الميتة عند الضرورة: ۱۹۲/٤، كتاب الام، كتاب الاطعمة، باب مايحل بالضرورة:۵۷۶/۵، تفسير الامام الشافعى بقرة: ۱۷۳، ۲٤۹/۱، المغنى لابن قدامةزكتاب الصيد والذبائح:۳۳۰/۹)

[3] (شرح الزرقانى كتاب الصيدباب ماجاء فيمن يضطر الى اكل الميتة:۹۵/۳، المنتقى : ۲۸۱/٤، احكام القرآن لابن العربى بقرة:۱۷۳، ۸۵/۱ بداية المجتهد، كتاب الاطعمة مقدار مايوكل من الميتة عند الضرورة: ۱۹۲/٤، كتاب الام، كتاب الاطعمة، باب مايحل بالضرورة:۵۷۶/۵، تفسير الامام الشافعى بقرة: ۱۷۳، ۲٤۹/۱، المغنى لابن قدامةزكتاب الصيد والذبائح:۳۳۲/۹)

[4] ( احكام القرآن لابن العربى سورة بقرة:۱۷۳، باب ذكر ضرورة المبيحة لاكل الميتة:۱۵٤/۱، تفسيرروح المعانى سورة البقرة: ۱۷۳، ٤۰/۱)

[5] (سورة الانعام:۱۱۷)

[6] ( احكام القرآن لابن العربى سورة بقرة:۱۷۳، باب ذكر ضرورة المبيحة لاكل الميتة:۱۵٤/۱، تفسيرروح المعانى سورة البقرة: ۱۷۳، ٤۰/۱)

[7] (موطاإمام مالک، كتاب ماجاء فيمن يضطر الى اكل الميتة: ٤۹۹/۲، كتاب الام، كتاب الاطعمة:۵۷٤/۵، المغنى لابن قدامةزكتاب الصيد والذبائح:۳۳۲/۹)

**حرام څیز په طور ددوائی استعمالول:**
دحرام څیز په طور د دوائی استعمالولو څه شرائط دی:
① ددې دوائی استعمال سره شفاء عادة یقینی وی.
② بله څه حلاله دوائی ددې په بدل کښې نه وی.
③ دین داره او ماهر فن معالج داحرامه دوائی تجویز کړی.
داسې صورت کښې په قدر دضرورت دا حرامه دوائی استعمالولې شی. [1]
چنانچه الدر المختار کښې دی:

**اختلف في التداوي بالمحرم وظاهر المذاهب المنع كما في رضاع البحر ولكن نقل المصنف ثم وههنا عن الحاوي، قيل يرخص اذا علم فيه الشفاء، ولم يعلم دواء آخر كما رخص في الخمر للعطشان وعليه الفتوى.** [2]

یعنی حرامو څیزونه په طور د دوائی استعمالولو کښې اختلاف دې. او ظاهری مذهب کښې ددې ممانعت راغلې دې. څنګه چې البحرالرائق، کتاب الرضاع کښې مذکور دی.لیکن مصنف تنویر هلته په رضاع کښې هم او دلته هم دحاوی نه نقل کړی دی، چې څینې علماء کرام فرمائیل: دوائی او د احرام استعمال په دې شرط جائز دې چې د د وائی په استعمال سره شفاء عادة یقینی وی، او بلې دوایئ سره ددې علاج نشی کیدې. څنګه چې د تږی دپاره د شرابو د یو ګوټ څکلو اجازت ورکړې شوې دې. او هم په دې فتوی ده
**إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ:**
**قوله:** الْمَيْتَةَ: میته ته په اردو کښې مرداره وائی. [3]
ددې نه مراد خناور دی، چې د هغې د حلالیدو دپاره په شریعت کښې ذبح کول ضروری دی. خو هغه بغیر د ذبح کولو نه پخپله مړ شی، یا په شرعی طریقې سره ذبح نه شی. [4]
البته دوه خناور د ذبحې نه بغیر حلال ګرځولې شوی دی. ① کب یعنی مهې ② مولخ.
حدیث مبارک کښې دی:

«أُحِلَّتْ لَكُمْ مَيْتَتَانِ وَدَمَانِ، فَأَمَّا الْمَيْتَتَانِ، فَالْحُوتُ وَالْجَرَادُ، وَأَمَّا الدَّمَانِ، فَالْكَبِدُ وَالطِّحَالُ» [5]
ددې نه معلومه شوه چې په خناورو کښې مهې او مولخ نه بغیر د ذبح نه حلال دی. البته که

---

[1] (الفتاوی عالمکیرة کتاب الکراهیة الباب الثامن عشر فی التداوی والمعالجات:۳۵۵/۵، المحیط البرهانی کتاب الاستحسان الفصل التاسع عشر فی التداوی المعالجات:۱۱۶/۶)
[2] الدر المختار کتاب الطهارة باب المیاه مطلب فی التداوی بالمحرم:۱۵٤/۱)
[3] (القاموس الوحیدص :۱۵۹۰)
[4] (احکام القرآن للجصاص سورة البقرة: ۱۷۳، باب المیتة:۱۷۲/۱، تفسیرروح المعانی سورة البقرة:۱۷۲، احکام القرآن لابن العربی بقرة:۱۷۲، ۷۷/۱، احکام القرآن للقرطبی سورة البقرة:۱۷۲، ۲۱۷/۲، زاد المسیر سورة البقرة:۱۷۲، ۱۵۱/۱، التفسیر الکبیر سورة البقرة:۱۷۲، ۱۱/۵، الکشف والبیان فی تفسیر القرآن سورة البقرة:۱۷۲، ۲۳۸/۱)
[5] (سنن ابن ماجة کتَابُ الْأَطْعِمَة/بَابُ الْكَبِدِ وَالطِّحَالِ رقم الحدیث-۳۳۱٤)

مهې په خپله مړ شي او د اوبو سر ته راشي نو هغه حرام دي.(۱)

تفصیل ماتهل باب قول الله تعالى: احل لكم صيد البحر كښي تير شوي دي.
دغه شان كه د ښكار ځناور په تیزې آلې سره زخمي كړې شي او د ذبح موقع ملاؤ نشي نو نو هغه هم حلال دې. ددې تفصیل په كتاب الصید كښي تير شوي دي.

**مرداري نه هر قسمه نفع حاصلول جائز نه دي:** آيت مذكوره كښي مطلقا ميته حرام گرځولي شوې ده. په دې وجه دهغې غوښه خوړل حرام دي. دغه شان ددې نه هر قسمه نفع حاصلول هم جائز نه دي.(۲)

او مردار ځناور يا ناپاك څيز په خپل اختيار سره ځناور باندې خوړول هم جائز نه دي. خوكه داسې ځائې كښي كيږدي چې سپې يا پيشو يې پخپله اوخوري نو دا جائز دي. خو پخپله راپورته كول او په هغوئ خوړل جائز نه دي.

**د ميته ويښته، هډوكي وغيره استعمالولې شي:**

دې آيت مبارك كښي د ميته د حرام كيدو حكم عام معلوميږي. چې په هغې كښي ميته ټول اجزاء شامل دي. ليكن بل آيت مبارك كښي ددې تشريح ده. (قُل لَّآ أَجِدُ فِى مَآ أُوحِىَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُۥٓ)(۳) ته ورته اووايه چې ماته نه ده معلومه هغه وحي نه ده رارسيدلې، د يو څيز حرامونكې چې هغه يې اوخوري.

ددې نه معلومه شوه چې د مردار ځناور هغه ټول اجزاء حرام دي كوم چې خوړلې كيږي. له دې وجې د مردار ځناور هډوكې، ويښته كوم چې د خوړلو څيز نه دې، هغه ناپاك دي. دهغې استعمال جائز دي..(۴)

**قوله:** الدم: دويم څيز الدم دې. يعنى وينه، سورة بقره كښي الدم مطلقا ذكر دي. او په سورة انعام كښي دم سره مسفوح هم ذكر دي. يعنى بهيدونكې وينه، معلومه شوه چې وينه مطلقا حرامه نه ده بلكه هغه وينه حرامه ده كومه چې اوبهيږي..(۵)

له دې وجې نه كومه وينه چې د ذبح كولو نه پس په وينه كښي پاتې شي هغه پاكه ده..(۶)

---

(۱)(احكام القرآن للجصاص ۱/۱۳۰،تفسير روح المعاني: ۱/ ۴۳۹)

(۲)( احكام القرآن للجصاص باب تحريم الميتة:۱/۱۳۰، فتح القدير كتاب الاشربة فصل طبخ العصير ۹/۴۰، ردالمحتار كتاب الأشربة:۶/۴۴۹ الفتاوى العالمكيرة كتاب الاشربة الباب الاول ۵/۴۱۱)

(۳)(سورة الانعام:۱۴۵)

(۴)( احكام القرآن للجصاص باب شعر الميتة وصوفها والفراء وجلودالسباع:۱/۱۴۸، الدر مع الرد كتاب الطهارة باب المياه:۱/۱۵۱)

(۵)( احكام القرآن للجصاص سورة البقرة:۱۷۲، ۲/۲۲۲، احكام القرآن لابن العربى بقرة:۱۷۲، زاد المسير ۱۷۲، ۱/۱۵۱، الكشف والبيان فى تفسير القرآن سورة البقرة:۱۷۲، ۱/ ۲۳۸)

(۶)( احكام القرآن للجصاص باب تحريم الدم ۱/۱۵۰، احكام القرآن للقرطبى:۲/۲۲۱، حاشية ابن عابدين كتاب الخنثى مسائل شتى:۵/۵۲۹)

**قوله:** لحم الخنزير: دريم څيز کوم چې حرام کړې شوې دې. هغه لحم خنزير ده. آيت مبارك كښې حرمت خنزير سره د لحم قيد مذكر دې. ددې نه مقصود د لحم تخصيص نه دې بلكه د خنزير ټول اجزاء هډوكي، څرمن وغيره په داخل دی. غوښه چونكه اعظم منافع ده، ځكه يې صرف د غوښې ذكر اوفرمائيلوګنې هسې خو د هغه ټول اجزاء حرام دی. لكه څنګه چې محرم له د قتل صيد نه منع كړې شوې دې، او ددې نه مراد محرم دپاره د ښكار ټول افعال دی. ځكه چې دښكار لوې مقصد هغه ښكار قتل كول دی. له دې وجې يې صرف دهغې ذكر اوكړو. حالانكه ددې نه مراد ټول افعال دی. دغه لحم خنزير حرام كړې شوې ده او ددې نه مراد ټول اجزاء دی. (1)

علامه قرطبى رحمة الله عليه فرمائي: چې لحم الخنزير نه مقصود لحم يعنى د غوښې تخصيص نه دې، بلكه دهغه ټول اجزاء هډوكى، څرمن او ويښته ټول باجماع امت حرام دی.
ليكن دلفظ لحم زياتولو سره اشاره دې طرف ته ده چې خنزير د نورو خناورو په شان نه دې. چې د باقى خناورو په ذبح كولو سره به دهغه غوښه پاكه شى. يعنى اګر چې د هغه غوښه خوړل حرام ده ليكن ذبح كولو سره به دهغه غوښه پاكه شى. ليكن د خنزير غوښه ذبح كولو سره هم نه پاكيږى ځكه چې هغه نجس العين هم دې. [(2)

**قوله:** وما اهل به لغير الله: څلورم څيز كوم چې ايت حرام ګرځولي دې. دا هغه خناور دې كوم چې د غيرالله په نوم ذبح شوې وى، دهغې درې صورتونه دى.
**اول صورت:** اول صورت دادې چې يو خناور د غيرالله د تقرب دپاره ذبح كړې شى او د ذبحې په وخت په هغې د غير الله نوم واخستې شى، دا صورت باتفاق واجماع امت حرام دې. او دا خناور ميته دې. (3)

**دويم صورت:** دويم صورت دادې چې خناور دتقرب الى غير الله ذبح كړې شى. يعنى ددې دوينې بهولونه مقصد تقرب الى غير الله وى. ليكن د ذبح په وخت په دې دالله تعالى نوم واخستې شى، لكه ډير ناواقفه خلق د بزرګانو او پيرانو په نوم دهغوئ د خوشحالولو دپاره چيلى، چرګان وغيره ذبح كوى، ليكن د ذبح په وخت په هغې دالله تعالى نوم اخلى، دا صورت هم باتفاق فقهاء كرام حرام دې، او مذبوحه حرامه ده.
چنانچه التفسير الكبير للامام رازى كښې دى:

(1) احكام القرآن للجصاص سورة البقرة:١٧٣ باب تحرى الدم، احكام القرآن لابن العربى بقرة:١٧٢، زاد المسير ١٧٢، ١٥١/١، الكشف والبيان فى تفسير القرآن سورة البقرة:١٧٢، ٢٣٨/١، تفسيرروح المعانى سورة البقرة:١٧٣، زاد المسير سورة البقرة:١٧٢، حاشية الشهاب مع تفسير البيضاوى البقرة:١٧٣، ٤٤٦/٢)
(2) احكام القرآن للجصاص سورة البقرة:٢،١٧٣/٢٢٢)

(3) (التفسير الكبير سورة البقرة:١٧٣، ١١/٥، تفسيرروح المعانى:٤٤٠/١، للقرطبى سورة البقرة:١٧٣، ٢٢١/٢، احكام القرآن للجصاص تحريم ما اخل به لغير الله:١٥٣/١، الكشف والبيان فى تفسير القرآن سورة البقرة:١٧٢، ٢٣٨/١، تفسير ابن كثير البقرة: ١٧٣، ٤٢١/١)

قال العلماء لوان مسلما ذبح ذبيحة وقصد بذبحها التقرب الى غير الله صار مرتدا وذبيحته ذبيحة مرتد. (١)
يعني يو مسلمان ذبح اوکړه، او ددې ذبح نه مقصد تقرب الى غير الله وى نو دا به مرتد وى او د هغه ذبيحه به هم مرتد وى.
او په حاشيه بيضاوى کښې دى:
فكل مانودى عليه بغير اسم الله فهو حرام، وان ذبح باسم الله تعالى حيث اجمع العلماء لوان مسلما ذبح ذبيحة وقصد بذبحها القرب الى غير الله صار مرتدا، وذبحيته ذبيحة مرتد. (٢)
هر هغه خناور چې په هغې دالله تعالى نوم اخستې شوې وى هغه حرام دې. اګر چې د ذبح کولو په وخت پرې د الله تعالى نوم اخستې شوې وى، ځکه چې د علماء کرامو په دې اتفاق دې چې خناور د غير الله د تقرب دپاره که يو مسلمان ذبح کړى نو هغه به مرتد وى او د هغه ذبيحه به هم مرتد وى.
الدر المختار کښې دى: ذبح لقدوم الامير ونحوه کواحد من العظماء يحرم لانه اهل به لغير الله ولو ذکر اسم الله ولو ذبح للضيف لايحرم. (٣)
يعنى د يو امير يا مشر کس په راتلو خناور ذبح کړې شى او په ددې ذبح نه مقصود تعظيم وى نو دا حرامه ده. ځکه چې دا په وما اهل به لغير الله کښې داخل دى. ليکن يو ميلمه راغلو. هغه دپاره د غوښې پخلو دپاره ذبح اوشوه نو ددې ذبحې نه مقصد د ميلمه تعظيم نه دې بلکه دغوښې حصول دې، نو دا جائز دى.
دغه شان تفسير قرطبي کښې دى:
يوې ښځې حضرت عائشه صديق رضى الله عنها نه پوښتنه اوکړه، چې اې ام المؤمنين زمونږ څو رضاعى رشته دار عجم دى، او هغوئ هر وخت څه نه څه تهوار وى، کله چې تهوار نو په هغه ورځ هغوئ مونږ ته هم څه راليږى. مونږ هغه خورو که نه؟
په دې حضرت عائشه صديقه رضى الله عنها اوفرمائيل
قوله: اما ما ذبح لذالك اليوم فلا تاکلوا ولکن من اشجارهم.
کوم خناور چې د هغه ورځې دپاره ذبح کړې شوې وى نو هغه مه خورئ، ليکن د هغوئ د ونو پانړې وغيره خوړ لې شئ. (٤)
او علامه قرطبى رحمة الله عليه ما اهل لغير الله په تفسير کښې فرمائى:

---

(١)(التفسير الكبير للامام رازى سورة البقرة:١٧٣، ١١/٥، وكذا فى تفسير نيسابورى على هامش الطبرى:١٢٠/٢، وكذا فى حاشية محى الدين شيخ زاده على تفسير البيضاوى سورة البقرة:١٧٣، ٤٢٣/٢، وكذا فى فتاوى عزيزى مسئله ذبح جانور بنام غير الله تعالى:٥٠/١، كتب خانه رحيميه)
(٢)(حاشية على تفسير البيضاوى سورة البقرة:١٧٣، ص:١٢٣)
(٣)(الدر المختار كتاب الذبائح: ٢١٧/٥)
(٤)(الجامع لاحكام القرآن للقرطبى سورة البقرة:١٧٣، ٢٢٤/٢، تفسير ابن كثير البقرة: ١٧٣، ٤٢١/١)

وجرت عادة العرب بالصياح باسم المقصود بالذبيحة وغلب ذلك فى استعمالهم عبربه عن الميتة اللتى هى علة التحريم.([1])

يعنی د عربو عادت وو چې د چا دپاره به يې ذبح مقصود وه نو د ذبح په وخت به يې په اوچت آواز سره دهغه نوم اخستو. او دا رواج په هغوئ كښې عام وو. تر دې چې په دې آيت مبارك تقرب الى الله كوم چې اصل علت د تحريم دې، د اهلال لفظ سره تعبير كړې شو.

**دريم صورت:** دريم صورت دادې چې تقرب الى غير الله دپاره څناور نه ذبح كوی، ليكن دا څناور د تقرب الى غير الله دپاره په مزار كښې پريږدی. او ددې ذبح كول او دا په استعمال كښې راوستل حرام ګڼرې، نو داسې څناور د بحيره او سائبه په حكم كښې دې. الله تعالى قرآن كريم كښې فرمائی:

ماجعل الله من بحيرة ولا سائبة..........الآية ([2])

الله تعالى نه ده مقرر كړې بحيره، اونه سائبه او نه وصيله او نه حامی، ليكن كافر په الله تعالى بهتان تړی.

حضرات مفسرين د بحيره تفسير دا كوی چې بحير هغه څناور ته وائی د كوم يې چې د بتانو په نوم كړې شی، هغه څوك خپل استعمال كښې نه راولی.

او د سائبه په تفسير كښې وائی چې سائبه هغه څناور دې كوم چې به دبتانو په نو پريښودلې شو. ([3])

لهذا كه چا تقرب الى غير الله دپاره څناور په مزار كښې پريښودو نو دا فعل خو بنص قرآن حرام دې، ليكن د هغوئ ددې حرام عمل سره او څناور لره د حرام ګڼرلو عقيد سره دا څناور نه حراميږی، له دې وجې دا دعامو څناورو په شان حلال دې.

البته هغه څناور د خپل مالك ملكيت دې. كه مالك دا څناور خرڅ كړو نو چا چې اخستې دې، هغه دپاره هغه څناور حلال دې. البته كه چا يو څناور دغير الله په نوم نذر كړو او بيا مالك په شرعی طريقه دا ذبح كړو نو په دې صورت كښې د ناذر مقصد ذبح ده، له دې وجې هغه د وما اهل به لغيرالله په وجه حرام دې، او اول صورت كښې د ناذر مقصد ذبح نه وه. ([4])

**دغير الله د نوم نذرونياز:**

ځينې خلق د غيرالله دنوم نذرونياز منښته كوی. لكه ميتهائی وغيره، او ميتهائی او دخوراك څكاك څيزونه، مزارونو ته اوړی او هغه تقسيموی. فقهاء كرام وائی چې دا حرام دی.

---

[1] (الجامع لاحكام القرآن للقرطبى سورة البقرة: ١٧٣، ٢٢٤/٢)

[2] (سورة المائدة: ١٠٣)

[3] (الجامع الصحيح للبخارى كتاب التفسير باب ماجعل الله من بحيرة..... رقم الحديث: ٤٦٢٣، احكام القرآن للقرطبى سورة المائدة: ١٠٣، ٢٠٩/٦، تفسير روح المعانى سورة المائدة: ١٠٣، ٢١/٤.)

[4] (امداد الفتاوى: ٩٩/٤، فتاوى عزيزى ص: ٤٨٤، امداد المفتين ص: ٩٣٢، مجموعة الفتاوى: ١٨٢/٢، احسن الفتاوى: ٥٠/١، خير الفتاوى: ٦٠٠/١)

ځکه چې په دې کښې هم هغه د حرمت علت تقرب الی غیر الله موجود دې
چنانچه د فقهې په کتابونو کښې مذکور دی.

اعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام. درمختار (قوله باطل و حرام) لوجوه: منها انه نذر لمخلوق ولایجوز لانه عبادة والعبادة لاتکون لمخلوق ومنها: ان النذور له میت والمیت لایملك.

ومنها: انه ان ظن المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالی کفر. ([1])

اکثر عوام مرو دپاره منښتې کوی، او د بزرګانو په مزارونو چې کومې موم بتې، خوشبو، پیسې، اچوی، او ددې نه مقصد داوی چې دا بزرګان خوشحاله شی. او دهغوی تقرب حاصل کړی. دا ټول باتفاق ائمه کرام حرام دی، او باطل دی.

او ددې د حرام کیدو څو وجوهات دی: یو دا چې مخلوق دپاره نذر منل، حالانکه نذر عبادت دی، او خالق دپاره خاص دې. دویم دا چې چا دپاره نذر منلې شوې دې هغه مړې دې، نو هغه څنګه د یو څیز مالك جوړیدې شی.

او دریم دا چې هغه مړی سره دا اعتقاد هم لرلې کیږی چې هغه په عالم کښې تصرف کوی، اودا عقیده لرل کفر دې.

## ۷۶- کِتَابُ الأَضَاحِيِّ

### ۱- بَابُ سُنَّةِ الأُضْحِيَّةِ

حدیث نمبر ۵۲۲۵ تا ۵۲۲۲

۵۲۲۵- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ زُبَيْدٍ الإِيَامِيِّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ البَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَوَّلَ مَا نَبْدَأُ بِهِ فِي يَوْمِنَا هَذَا أَنْ نُصَلِّيَ، ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ، مَنْ فَعَلَهُ فَقَدْ أَصَابَ سُنَّتَنَا، وَمَنْ ذَبَحَ قَبْلُ، فَإِنَّمَا هُوَ لَحْمٌ قَدَّمَهُ لِأَهْلِهِ، لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ»

ترجمه: رومبې روایت دحضرت براء بن عازب رضی الله عنه دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د ټولو نه اولنې کار چې په دې ورځ به مونږ شروع د هغې نه کوؤ، هغه دا چې مونږ به مونځ کوؤ، بیا به واپس شو او قربانی به کوؤ. چا چې داسې اوکړل هغه زما سنت ادا کړل، او چاچې ددې نه وړاندې څناور حلال کړو نو هغه غوښه ده، کومه چې ده د خپل اهل وعیال دپاره تیاره کړه، دقربانۍ نه په کښې هیڅ نشته.

[1] (حاشية الطحطاوي على الدر المختار كتاب الصوم باب ما يفسد الصوم وما لا يفسد: ۴۷۱/۱، ۴۷۲، دارالمعرفه، حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح كتاب الصوم باب مايلزم الوفاء به: ص: ۲۹۳، البحر الرائق كتاب الصوم فصل في النذر: ۵۲۰/۲، ۵۲۱، الفتاوى العالمكيرة كتاب الصوم فصل في المتفرقات: ۲۱۶/۱، رد المحتار كتاب الصوم باب الاعتكاف: ۴۳۹/۲)

فَقَامَ أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ، وَقَدْ ذَبَحَ، فَقَالَ: إِنَّ عِنْدِي جَذَعَةً، فَقَالَ: «اذْبَحْهَا وَلَنْ تَجْزِيَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ» قَالَ مُطَرِّفٌ: عَنْ عَامِرٍ، عَنِ الْبَرَاءِ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلاَةِ تَمَّ نُسُكُهُ، وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ»

ابوبرده بن نيارعرض اوكړو او هغوئ دمونځ نه وړاندې ځناور ذبح كړې وو، چې ما سره د شپږو مياشتو يو بچې (ځناور) دې نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل: هغه ذبح كړه، او ستا نه پس به هيچا دپاره كافى نه وى. دويم روايت هم د حضرت براء ﷺ دې، نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې چا د مونځ نه پس ذبح اوكړه، نو دهغه قربانى پوره شوه، او هغه دمسلمانانو سنت موندلو.

٥٥٣٦- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاَةِ فَإِنَّمَا ذَبَحَ لِنَفْسِهِ، وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلاَةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ، وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِينَ»

دريم روايت د حضرت انس بن مالك ﷺ دې، نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې چا د مونځ نه وړاندې ذبح اوكړه، نو هغه دخپل ځان دپاره ذبح اوكړه، او چا چې د مونځ نه پس ذبح اوكړه، نو د هغه قربانى پوره شوه، او هغه د مسلمانانو سنت اوموندلو.

**تراجم رجال:**

**قوله: ابن عمر:** دا د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ خوئې حضرت عبدالله بن عمر ﷺ دې، ددوئ مفصل حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ/بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «بُنِيَ الإِسْلاَمُ عَلَى خَمْسٍ» كښې تير شوى دى.[1]

**قوله: محمد بن بشار:** دا راوى مشهورامام حديث محمد بن بشار بن عثمان بن عبدى بصرى دې ددوئ حالات په كتاب العلم كښې تير شوى دى.[2]

**قوله: غُندَر:** دابوعبدالله محمد بن جعفر هذلى رحمة الله عليه حالات په كتاب الايمان كښې تير شو يدى.[3]

**قوله: شُعبَة:** دا امير المؤمنين فى الحديث شعبة بن الحجاج بن الوردعتكى واسطى بصرى رحمة الله عليه دې. ددوئ حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ/بَابٌ: الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ كښې تير شوى دى.[4]

**قوله: زُبَيد الإيامي:** دا راوى زبيد بن الحارث بن عبدالكريم بن عمرو بن كعب اليامى الكوفى

---

[1] (كشف البارى: ١/٦٣٧)
[2] (كشف البارى: ٣/٢٥٨)
[3] (كشف البارى: ٢/٢٥٠)
[4] (كشف البارى: ١/٦٧٨)

رحمة الله عليه دې، ددوئ حالات په کتاب الايمان كښې تير شوى دى.[1]

**قوله:** الشَّعْبِيّ: دا راوى ابوعمرو عامر بن شراحيل شعبى كوفى رحمة الله عليه دې، ددوئ تفصيلى حالات په کتاب الايمان كښې تير شوى دى.[2]

**قوله:** البَرَاءِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: دا راوى مشهور صحابى حضرت براء بن عازب بن الحارث بن عدى انصارى حارثى اوسى ﷺ دې. ددوئ حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ كښې تير شوى دى.[3]

**قوله:** مُطَرِّف: دا امام مطرف بن طريف حارثى رحمة الله عليه دې ددوئ حالات په کتاب العلم كښې تير شوى دى.[4]

**قوله:** مُسَدَّدٌ: دا راوى مسدد بن مسرهد اسدى رحمة الله عليه دې. ددوئ تفصيلى حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ كښې تير شوى دى.[5]

اسماعيل: دا راوى اسماعيل بن ابراهيم بن مقسم اسدى بصرى رحمة الله دې. ددوئ حالات په کتاب الايمان كښې تير شوى دى.[6]

**قوله:** أَيُّوبَ: دا راوى ابوبكر ايوب بن ابى تميمه كيسانى سختيانى بصرى رحمة الله عليه دې. ددوئ حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ كښې تير شوى دى.[7]

**قوله:** مُحَمَّدٍ: دا راوى مشهور تابعى عالم امام شيخ الاسلام ابوبكر بن سيرين انصارى بصرى رحمة الله عليه دې. ددوئ حالات په کتاب الايمان كښې تير شوى دى.[8]

**قوله:** أَنَسٍ: دا راوى مشهور ومعروف صحابى او خادم رسول ﷺ حضرت انس بن مالك دې ددوئ مفصل حالات په كِتَابُ الإِيمَانِ/بَابٌ: مِنَ الإِيمَانِ أَنْ يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ كښې تير شوى دى.[9]

**تشريح:**

دباب رومبې حديث په كِتَابُ العِيدَيْنِ/بَابُ سُنَّةِ العِيدَيْنِ لِأَهْلِ الإِسْلَامِ كښې او دويم حديث په كِتَابُ العِيدَيْنِ/بَابُ الأَكْلِ يَوْمَ النَّحْرِ كښې تير شوې دې.[10]

---

[1] (كشف البارى:۵۵۸/۲)
[2] (كشف البارى:۶۷۹/۱)
[3] (كشف البارى: ۳۷۵/۲)
[4] (كشف البارى: ۲۲۷/٤)
[5] (كشف البارى: ۲/۲)
[6] (كشف البارى: ۱۲/۲)
[7] (كشف البارى: ۲۶/۲)
[8] (كشف البارى: ۵۲٤/۲)
[9] (كشف البارى:٤/۲)
[10] (كشف البارى كتَابُ العيدَيْن /بَابُ سُنَّة العيدَيْن لأهْل الإسْلَام (رقم الحديث-۹۵۱ - ۹۵٤)

